# دافغانستان پيژندنې لنډه لار

ليکوال:

پوهنوال سيد نوراللّه ځل

۱۳۷۹ لمريز - کب

# دافغانستان پېژندنې لنډه لار




ليکوال

پوهنوال سيد نورالله ځل




۱۳۷۹ لمريز - کب

# کتاب پیژندنه:


١:- د کتاب نوم: د افغانستان پیژندنې لنډه لار

٢:- لیکوال: پوهنوال سیدنورالله ځل

٣:- د کمپوز چارې: محمدیوسف "ستانکزی"

٤:- چاپ ځای: البیروني پرنتنګ پریس

٥:- د چاپ نیټه: (١٣٧٩) لمریز

٦:- چاپ شمیر: (١٠٠٠) ټوکه

٧:- بیه: (      ) روپیه

# لړلیک

# لړلیک

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# څو خبرې

زموږ ګران لرغونی هیواد چې د نړۍ د تمدونونو په څلور لارې کښې پروت دی غنی فرهنګ، ویاړلی تاریخ او باتور بچیان لري چې افسانې او کارنامې یې نړیوالو ته معلومې دي خو له بده مرغه له ۲۲ کالو راپدیخوا په داسې جنجالونو او ستونزو اخته دی چې قربانۍ د دغه هېواد بچیان ورکوي او ګټې یې نور پور ته کوي. جګړې له افغانانو هر څه واخستل یوائې مرګ، ژوبله، کړنډې. یتیمان، مهاجرت، بې وطنې، بې کاري، احتیاج، ناروغي، بې تعلیمي او ځینې نورې بدمرغۍ یې افغانانو ته ور وبخښلې.

په هر صورت زموږ وطني متل دی چې «ژمی تیریږي خو تور مخی سکرو ته پاتې کیږي» ټولو ته څرګنده ده چې په هېواد کښې د ناوړه شرایطو او جګړو له کبله ډیر افغانان بهرنیو هیوادونو ته مهاجر شول. د مهاجرت په دوران کښې د هغوي بچیان پیدا شول او رالوی شول، د دغه نسل په هکله ډیرې کورنۍ او ډیر ښاغلي اندیښنه لري، څوک وایې: چې که وضع همداسې وي نو که څوک په بهر کښې د رالوی شوو افغانو نه پوښتنه وکړي چې ته څوک یې؟ هغه به ورته ووایې چې پلار مې افغان و

او نیکه می مسلمان. څوک وایې چې زموږ بچیان د خپل هیواد نومیالی نه پیژني خو چې په کوم ملک کښې اوسیږي د هغه ملک مشاهیر ټول پیژني، څوک وایې په بهر کښې د افغانانو نوی نسل د خپل هیواد د تاریخ، جغرافیوی موقعیت، ځلور خواو، دود او دستور، طبعي زیرمو او نورو په باب معلومات نلري. تر ډیره ځایه دا اندیښنې په ځای دي موږ پخپله دا وضع د پیښور په ځینو افغاني لیسو او ښوونځیو کښې ولیدله، نه همدې امله پدې فکر کښې شوم چې ددې ستونزې د حل لپاره باید څه وشي ؟

د ډیرو پوهو دوستانو د ګټورو مشورو څخه وروسته دې نتیجې ته ورسیدم چې باید په روانه ژبه داسې یو کتاب ولیکل شي چې د ګران افغانستان په هکله پکې ضروري معلومات ځای شوي وي، ما پخپلو محدودو امکاناتو دغه مهم کار ته متې رانغښتې وهلې یو کال مې پدې باره کښې هلې، ځلې وکړې او څه مې چې له وسه پوره شول را ټول مې کړل او اوس یې په هیوادنۍ مینه ستاسې مخې ته ږدم. په درنښت

پوهنوال سید نورالله «ځل»

درانیو ګړی، پیښور.

# د افغانستان پیژندنې لنډه لار

له ډیرو پخوانیو وختونه را په دیخوا د قلم د خاوندانو. پوهانو، عالمانو او ادیبانو مکلفیت د ټولنې د نیمګړتیاو د پوره کولو هلې ځلې او خپلې ټولنې ته د پرمختګ د لارو چارو برابرول و چې دا لړۍ تر اوسه لا پرمخ ځي او د هر عالم د زړه وینې یې وچې کړې دي.

افغانستان دا زمونږ د ټولو افغانانو ګډ کور چې حتی مونږ هر یو ته د جنت مثال لري پیژندنه د ګران هیواد په تعلیمي نصاب کښې شته چې څلورم، پنځم او شپږم ټولګیو کښې د اجتماعیاتو په نامه تدریس کښې ځای شوی او له اووم ټولګی نه تر دولسم او حتیٰ په لوړو تحصیلاتو کښې د جغرافیې په نوم تر تدریس لاندې نیول شوې او هر یو پوه د خپل شوق، مینې او تخصصي معلوماتو په لرلو د ګران هیواد په جغرافیه کښې خپل زړونه تش کړي او پوره معلومات یې لوستونکو او زده کوونکو ته وړاندې کړي دي.

خو د افغانستان پیژندنې لنډه لار چې د هیواد ټکړه حقوق پوه پوهنوال سید نورالله «ځل» را منځ ته کړی، او د ګرانو وطنوالو د نوو ځلمیانو د سالمې روزنې د پوره معلوماتو د تر لاسه کولو تنده یې پرې ماته کړې له نورو نه دا زیاتوالی لري چې هغه وطنوال چې د ورستیو او

مخکنیو انقلابی شرایطو د خرپړتیا او ژوند د خطر سره د مخامخ کیدو له املـه دې ته اړ شوي و چې وطن پرېږدي بو خوا او بله خوا چیرته چې یې ښـه وه هغلتـه یې شپـه شوه او وکوچیدل د نورو هیوادو د کلتور سره اشنا شول او هغه یې خپل اصلي مال ځکه گڼلو چې ژوند یې هلتـه تر سره کیده نو مجبوراً یې د هغه چاپیریال دود او دستور خپل کړ او ځانونه یې ورسره برابر کړل.

ددې د پاره چې د غه ځوان نسل د گران وطن افغانستان نـه بیخي بی معلوماتو پاتی نشي یوازی په نوم ځان افغان ونـه بولي بلکی د افغان د نوم سره پښتـو ، پښتونولي دودونه رواجونه د هرې سیمې څرنگوالی ، حاصلات او جغرافیـایي دریځ او د وگړو شمیر وپیژني او له دې سترو معلوماتو نه بې برخې او محروم پاتې نشي د افغانستان پیژندنې لنډه لار چې دې زخمونو ته د ملهم داسې په زړه پورې پټی ده چې په لوستلو او زده کولو به یې هر افغان ځان رښتیا هم افغان احساس کړي او د محترم پوهنوال سید نورالله ځل صاحب دا زیار به دومره د قـدر وړ وبولي چې لیکوال ته د دواړو دنیـاو د نیکمرغی او سرلوړی د غوښتنو سره سره د داسی نورو په زړه پورې کتـابونو د لیکلو توفیق ورتـه له خدای « ج » څخه وغواړي چې په هره شیبه ، هر ځای او د هر چا ورتـه زیاتـه اړتیا لیدل کیږی له دې املـه یې په تعلیمي نصاب کښې داخلیدل گټور او حتمي بولم.

آقا محمد « گړندی » د میرویس هوتک د لیسی د پښتو ادبیاتو استاد

# دا به سریزه وی؟

د افغان فرهنگي ټولنې اونیزه غونډه لا نه وه پیل شوې دوستان یو په بل پسې راروان و چې پوهنوال سید نورالله ځل هم راغی د السلام علیکم وروسته یې راته وویل!

د غونډې له شروع نه وړومبی درسره یو ضروري کار لرم، ما چې خوله څه ویلو ته جوړوله ده وویل بیا د غونډې روسته مابنام وي، هر سړی په منډه وي، راځه چې پیل شو، ځل صاحب له ملګرو نه په اجازه پاڅید، زه هم وریسې روان شوم په مخامخ کوټه کښې کیناستو، ځل صاحب لږ، قاطع او په ولسي ژبه مطلبي خبری کوي، هسې هرې خبرې ته مقدمې نه ړدي ویې ویل مومند صاحب دا څو پړ راجستر ګوري، دا ما یو څه لیکلي دي، دا به ټول له نظره تیر کړې او بیا به په خلاص مټ پرې یو څه ولیکې، ما راجستر راواخیست او خدای «ج» شته دد ي خلاص مټ خبرې بی حده خوند راکړ ځکه چې نن سبا اکثره سریزې فرمایشي شوې دي، خو ښاغلي پوهنوال سیدنورالله ځل ماته دا کتاب د یوه صلاحیت سره راوسپاره، په اوله پانه تر کلمې وروسته لیکلي شوې و، (د افغانستان پیژندنې لنډه لار) حیران پاتې شوم، چیرته زه او چیرته د پوهنوال سیدنورالله ځل یو داسې کتاب چې علمي، تاریخي، ادبي او په هره حواله یو معتبر کتاب دی نو سریزه لیکل پرې د ازغو مزل دی خو دا چې د پوهنوال ځل صیب زړه په ما ښه کیده، نو دا کار یې ماته راوسپاره، دادی د سریزې په نامه دا څو کرښې تورو م، خو دا به

سریزه وی؟

ځکه چې چیرته د ځل صاحب په ښهر یو پیاوړی لیکوال چیرته زما په ښهر هو مبتدي لیکوال خو خبره داده چې پوهنوال صاحب زما امتحان اخلی، نو ددوی دا کتاب می له الف نه تر «ی» ولوست چې هره موضوع یې د بیل کتاب موضوع وه او هغه د چا خبره چې په هره موضوع یې ځانله، ځانله کتاب لیکل کیږی، چې مجموعاً به تری نولس کتابونه جوړ شي، ځکه چې هره موضوع د لیکنی لپاره پراخه ځمکه لري لکه د افغانستان موقعیت، سرحدی کرښې، اقلیم او لرغونتوب د افغانستان لرغونی اثار، لیک دود، خواړه، لوبی ملکی او اداری ویش، د افغانستان د مرکز څخه د لویو ښارونو واټن په کیلو متر.

اساسی قوانین او د دولتی قواو تفکیک د هیواد نومیالی، او نوری موضوع گانی سره په دې کتاب کښې راغونډی کړی دي چې بیا وایم هره موضوع په خپل ذات کښې، یو ځانله کتاب دی، خو ځل صاحب یوه موخه لري یو مرام او هدف لری او همدی هدف ته د رسیدو لپاره یې دا مقصدی گټمور ملی، تاریخی، فرهنگی، جغرافیوي، کلتوری، او ... کتاب نه بلکی یوه ستره پروژه شروع کړی ده، چې د دوی دا کار او هڅه د ډیری ستاینی وړ ده او یوه ملی او هر اړخیزه اجتماعی پروژه یې گنم، ځکه چې ځل صاحب وطن پال، با احساسه، با درده او د یوه هدف خاوند دی. که ځل صاحب د کتاب چاپولو خپل شوق پوره کولای او د نوم خبره وای، نو د دغو نولسو څپرکو څخه به یې یو څپرکی غوره کړی وای او ښه په خوند او مزه به یې خپله تنده پری ماته کړی وای، خو ځل صاحب د خپل ولس او خلکو د خدمت لپاره د داسی کولو پر ځای (د افغانستان پیژندنی لنډه لار) په نامه په نولسو موضوعاتو مشتمل دا کتاب خپلی تولنی او خلکو ته په مخکښې کینبود او داسی څه به نه وی، چې د لوستونکی عاجل پکار وي او په دی کتاب کښې به نه وی دا کتاب لکه طبی عاجلی مرستی دغسی دی، خو دا د ژوند په منډه

کښېږ د ځان را قابو کولو او ځان پېژندنې اول لاس مواد دي، چې سړی پرې خپل ځان وپېژني، خپل هیواد وپېژني او د خپل هیواد مربوط معلومات لاس ته راوړي د ځل صاحب یوه کامیابي دا هم ده چې هسې په خبرۍ پسې نه دی تللی او خبره ترې جړه شوې نه ده څومره او څنګه چې دوی د خپلې لیکنې د پاره برید ټاکلی و. هغې برید ته رسیدلی دی، همتله ولاړ دی، چې دا د یو لیکوال د پاره ستونزمن کار دی او دا د ښه لیکوال صفت دی چې موضوع دې وی ځمکه دې د لیکلو د پاره وی او دی دې لیک بس کړی، ځکه چې لیکوال دا ښې کولای، خو دا جسارت جرئت او قربانۍ ځل صاحب کړیده او د لوستونکی د حوصلې امتحان یې پرې نه دی اخیستی چې دا هم د یو کامیاب او برلاسي لیکوال صفت دی د پوهنوال ځل دا خواری او کوښښ ځکه ډیر کامیاب او د لوستونکی په مزاج برابر دی چې لوستونکی نه سرګردانه کوی او له اړتیا سره سم یې موضوع غزولی او پسې تللی او د خپل لوستونکی خیال یې ساتلی دی، بلکې د حوصلې د ماتولو کوښښ یې نه دی کړی او ملی جذبه یې پر خپلې جذبې لوړه ګڼلې، ځکه چې دده دا کتاب د یوې سوچه ملی جذبې زیږنده ده چې هم ضرورت دی او هم اړتیا او خصوصاً د هغو افغانانو بلکې ځوانانو لپاره چې له خپل خواږه هېواده لرې د پردیسۍ او بیکسۍ شپې ورځې تیروي، چې نه د خپل کلتور خبر دی او نه د خپل هیواد جغرافیوی پولې پېژني، نه ورته چا تاریخ په مخکښې ایښې نه خپل نومیالي او غازیان پیژنی، نه فرهنګي او ادبي شخصیات نه د خپلو اسلافو له کارنامو نه خبر دي، نه له خپلو روایاتو نه او نه........ نو ددغسې ځوانانو لپاره ددې کتاب مطالعه د یو استاذ او لاربښود حیثیت لری او لکه ړانده ته چې امسا په لاس ورشي. د پوهنوال سید نورالله ځل په نه ستړې کېدونکو هلو ځلو به زمونږ له وطن نه لرې ځوانان په ډیر لږ وخت او لږه مطالعه د خپل هېواد د تاریخ، جغرافیه ...... او آن له لویو به هم خبر شي چې دا واقعاً خدمت

دی او دوی چې دی کتاب ته کومی موضوع گانی غوره کړی دي، دا د خدمت په جذبه په ملي روحیه او افغانی ولوله شوی دي، د یو درد له مخی د یو احساس له مخی او د خپل هغی نوی نسل چې له وطنه لری ژوند تیروی، د پاره شوی دي او دا د پوهنوال ځل یو ډیر گټور ملی گام و. چې په ډیر موفقیت یې پورته کړی دی او دادی د ځل صاحب د ډیری مودی خواری زمونږ مخی ته پرته ده، چې اوس باید دا گټور کتاب په تعلیمی نصاب کښې هم شامل شی او نوره گټه تری واخیستل شی او که دا کتاب په نورو ژبو وژباړل شی هغو کسانو ته به چې له افغانستان سره علاقه لری او غواړی دا هېواد وپیژنی، مرسته وی زه پوهنوال سیدنورالله ځل ته د مبارکی سره سره د نور دغسی ابتکاری علمی، تاریخی، فرهنگی، او په هر پلو، د داسی گټور ملی کار لپاره ورته د مضبوطې حوصلی دعا کوم او د ده پر مضبوط قلم دی برکت شی او ژوندی دې وی چې زمونږ په (هست کښې نیست) او یا په وینښ کښې ویده له ورکی نه وساتی او رانه تقریباً پردی شوی ځوانان په دغسې هلو ځلو لا اقل له خپل ځانه خبر شی او ځان وپیژنی.

او له هغو چې جهان پیژنی او ځان نه. چې د دغسی هلو ځلو په نتیجه کښې ځان هم وپیژنی، ځکه چې اول ځان پسی جهان.

درنو لوستونکو زه مو نور له مینځه وځم لار پریږدم، خو د پوهنوال سیدنورالله ځل صاحب د ستاینې لپاره راسره دا وخت لفظونه او حرفونه ملگرتوب نه کوی نو همدومره به ووایم چې

*ستا الفت دی چې ژوندون یې راله خوږ کړ*

*گـنـی ژونـد خـو سـر تـر پایه یو تلخي ده*

په درنښت

جنرال عبدالصمد مومند د افغان فرهنگی ټولنی مشر

او د مومند ادبي جرگی صدر، ۲ فبروری ۲۰۰۱ پیښور.

# لومړی څپرکی

## د افغانستان موقعيت، سرحدي کرښې اقليم او لرغونتوب

افغانستان په وچې پورې تړلی د آسيا د لويې وچې په زړه کښې پورت لرغونی هيواد دی. علامه اقبال يې د آسيا زړه ګڼي چې سلامتيا يې د آسيا د سلامتيا سبب ګڼي او فساد يې د آسيا د بدمرغۍ عامل بولي.

افغانستان لوړ غرونه او مست سيندونه لري او د طبيعي ښکلو درو په درلودلو يې د آسيايي سويس نوم ګټلی دی.

افغانستان د خپل ځانګړي جغرافيوي موقعيت له مخې د تاريخ په اوږدو کښې د هند د نيمې لويې وچې دروازه بلل شوې ده، چې همدغه جغرافيوي ځانګړې موقعيت ورته بلا ګرځيدلې دی. چې کله د روسانو او برتانويانو د سيالۍ ډګر ګرځيدلی او کله هم د تودو اوبو او تورو تيلو د خوندي کيدو له امله د ښکرو په انګيتې کښې لکه د سپيلني لوګی شويدی.

دا هيواد (۶۵۰) زره مربع کيلو متره مساحت لري چې په هر مربع کيلو متر کښې يې تقريباً (۳۵) تنه ژوند کوي، افغانستان د مساحت له پلوه د جاپان دوه برابره او په ځانګړې توګه له المان، فرانسې او انګلستان څخه لوی دی، خو د نفوسو له پلوه له دې هر يو هيواد څخه لږ نفوس لري.

افغانستان د مساحت له پلوه د آسيا په لويه وچه کښې لسم درجه هيواد دی افغانستان په شمالي نيمه کره کښې د عرض البلد (۲۹) درجو او (۲۲) دقيقو او (۳۸) درجو او (۲۹) دقيقو تر منځه پروت دی، همدا راز د طول البلد د

گرینویچ له مبدا ء څخه ختیځ خواته د طول البلد ( ۶۰ ) درجو او ( ۳۰ ) دقیقو او ( ۷٤ ) درجو او ( ۵۲ ) دقیقو ترمنځ پروت دی. ددی هیواد دریمه برخه غرونو نیولې ده، چې د غرونو لړۍ یې زیاتره له شمال ختیځ څخه د جنوب لویدیځ لور ته غزیدلی دي چې هیواد یې پر شمالي او جنوبی برخو ویشلی دی او مشهور غرونه یې دادي:

د هندوکش غرونه، بابا غر، فیروزکوه، سیاه کوه، تیربند ترکستان، سپین غر، تورغر، سلیمان غر او پامیر غر.

څرنگه چې د افغانستان د غرونو لوړوالی په ځینو برخو کښې زیات دی نو ژمی په غرنیو برخو کښې شوی واوری هلته زیرمه کیږی او د کال په اوږدو کښې د اوبو سرچینه جوړوي.

دا چې د افغانستان غرونه تقریباً ختیځ او لویدیځ موقعیت لری نو زیات سیندونه چې له دی غرونو څخه سرچینه اخلي شمال او جنوب خواته بهیږي، چې مشهور سیندونه یې دادی:

کابل سیند، هیلمند سیند، هری رود، مرغاب سیند او آموسیند.

څرنگه چې سیندونه له لوړو سیمو څخه سرچینه اخلي، نو له همدې امله یې په غرنیو سیمو کښې چټکوالی زیات دی او همدغه چټکوالی له سببه په هغه سیمو کښې چې سیندونه بهیږي هر کال یې څه برخې تخریب او مواد یې له اوبو سره لیږدیږي او په بله لیرې سیمه کښې رسوب کوي د مثال په ډول د امو د سیند لوړوالی له سرچینی څخه ترخم آب پوری د ( ۳۰۰۰ ) مترو په اندازه تغییر مومي، همدا ځوړوالی ددې سبب کیږي چې په کال کښې ( ۲۵۰ ) میلیونو مترو مکعب په اندازه رسوبي مواد له ځانه سره لیږدوی او په نورو سیمو کښې یې غورځوي، د سیندونو پر غاړو د نباتاتو نشتوالی او په وروستیو کلونو کښې د ځنگلونو د بیرحمانه پرې کولو په وجه د ځمکو د تخریب او احتکال اندازه نوره هم زیاته شوې ده او د سیلابونو د زیاتوالي اسباب یې برابر کړی دی.

په افغانستان کښې د المان د متخصصینو د گذارشونو پر بنسټ (چې د

پکتیا په پروژه کښې یې د خاورې د تخریب ثیړنه کوله) څرګنده شوې ده چې یوازې د خوست له سیمې څخه هر کال (۳۲) زره ټنه حاصل خیزه خاوره په اوبو پریمنځل کیږي او بهرته وړل کیږي، اوس نو که د کونړ او پکتیا د ولایتونو د له منځه تللو ځنګلونو سیمه اټکل کړو، داسې څرګندیږي چې زموږ د هیواد د غرنیو سیمو حاصل خیزه خاوره زموږ ناپوهۍ له امله د دریابونو خوراک کیږي او موږ ته ترې یې له کانو نور څه نه پاتې کیږي چې نوي بوټي پرې زرغونیدای نشي همدغه خاورې چې اوبه یې وړي سوونه کلونه غواړي چې بیا جوړه شي، د مثال په توګه د یو سانتي متر کرنیزې خاورې د جوړیدو لپاره (۲۸۰) کلونو ته اړتیا ده.

که چیرې په افغانستان کښې د بریښنا د تولید او کرنیزو ځمکو د خړوبولو لپاره بندونه جوړ شي له یوې خوا به د دې سیندونو د سیلابي کیدو منځنیوی وشي او له بلې خوا به د بریښنا پیداکولو او د ځمکو په خړوبولو کښې ور څخه ډېره ګټه واخستل شي.

## د افغانستان نومونه او څلورخواوې:

دا لرغونی هیواد د تاریخ په اوږدو کښې د هر ډول طبیعي او سیاسي ناخوالو له زغم سره سره خپل هویت ساتلی دی. په لومړي سر کښې د دې هیواد نوم آریانا و، چې شمالي سرحد یې سیحون او د هند سندر یې جنوبي سرحد و همدا ډول په ختیځ کښې ګلګت او په لویدیځ کښې د کسپین د سمندرګی له ختیځې برخې څخه پیل د بلوجستان په ګډون د هند تر سمندر پورې ټولې سیمې په آریانا کښې شاملې وې. په اوومه او اتمه پیړۍ کې د مسلمانانو فتوحات د دې سبب شول چې نوموړي هیواد نوم پر خراسان واوړي، کله چې په اتلسمه پیړۍ کښې احمدشاه بابا واکمن شو د دې هیواد ساحه یې پراخه کړه او پر اختیا یې کابو د آریانا دورې ته ورسیده او د سیمې نوم یې پر افغانستان واوښت. د احمد شاه بابا په وخت کښې د افغانستان ساحه له امو سیند څخه ها خوا ته غزیدلې وه په جنوب کښې یې د عمان خلیج او د عرب بحیرې او په ختیځ کښې تر ډیلي

پورې د احمدشاه بابا د امپراطورۍ ساحه پراخه شوې وه.

د نولسمې پېړۍ په پيل کښې له يوې خوا انګريزان او شورويان په منځنۍ اسيا کښې يو د بل رقيبان و او له بله پلوه دننه په افغانستان کښې خپل منځي جګړې د دې سبب شوې چې افغانستان خپله زياته ساحه له لاسه ورکړي او اوسنۍ بڼه غوره کړي.

پورته دې ټکي ته اشاره وشوه چې ګوېا د افغانستان نوم د احمدشاه بابا په دوره کښې مينځ ته راغلی خو علامه پوهاند عبدالحی «حبيبی» پخپل افغان او افغانستان نومي اثر کښې ليکی:

«د افغان کلمه چې اوس د افغانستان د ټولو خلکو ملي نوم دی او د آسيا په زړه کښې يې تر ټولو تاريخی، اقتصادی او ټولنيزو شرايطو لاندې يو نه بيليدونکی واحد جوړ کړيدی داسې نوم دی چې ليږ تر لږه (۱۷۰۰) کلن تاريخي لرغونتوب او ملي اصالت لري.» علامه حبيبي ليکي په شلمه پيړۍ کښې د ايران په «نقش رستم» کښې د شيکاګو د ختيځی موسسې د لرغون پوهانو يوې ډلې د هغه ځای په ډبر ليکونو کښې د زردشت په کعبه کښې په دوه پهلوي اشکايي (پارتي) او يوناني ژبو يو ډبر ليک ومونډ چې هغه د ساسانی کورنۍ د دوهم بادشاه لومړي شاهپور تر (۲٦۰) م کال او د اوديسی په جګړه کښې د روم د امپراطور واليرين (Valerian) تر ماتی او اسارت وروسته زردشت د کعبې د ديوال په ډبرو ليکلی دی.

د همدې ډبر ليک په شپږمه برخه کښې د شاهپوز د واکمنۍ په مهمو کسانو کښې د (وينده فرن آبګان رزم ود) نوم ياد شوی دی چې د سپرنګ لونګ (Sperngling) په نوم يو محقق لومړی ځل دا ډبرليک ولوست او دا مريکې په سامي مجله کښې په (۱۹٤۰) م کال يوه مقاله وليکله او دويمه کلمه (آبګان) يې په قاطع ډول د افغان له اوسني نامه سره تطبيق کړ او هم وايی چې ساساني پاچا دريم شاهپور له نامه سره چې (۳۰۹ - ۳۷۹ م) پورې يې اويا کاله پاچاهی کړې د آپکان (Apakan) په نامه يو صفت او لقب ياد شوی دی چې دا کلمه هم

کولای شي د آبگان د يادې شوې کلمې غونډې وګڼو د زړه ورتوب، رُشد او نجابت د صفت او يا به هم د نژادي تړون په بناء راوړل شوی وي او همدا موضوع ده چې ځينې مورخين سراولف کيرو يې د ساساني دربار په مشرانو کښې د درانيو او يوسفزيو د شته والي په فکر کړی دی.

(پتانان E متن ۸۰ مخ) او موږ نومړی نوم د (ويندہ فرن افغان رزم بد) يعنې د افغان د جګړې سالار ويندہ فرن ويلای شو چې ښايي يو افغان سالار وی.

د فردوسی په شاهنامه کښې دوه ځله د اوګان نوم راغلی چې د فريدون د وخت له سپه سالارانو څخه و، که څه هم د شاهنامې داستانونه تاريخي سندونه نه دي خو زيات پخواني حقيقتونه پکښې نغښتی دي د نمونې په توګه په همدې بيتونو کښې قادن ياد شوی چې د قادن کورنۍ د اشکانيانو د دوری يوه اشرافي کورنۍ وه او په (۵۰ ع) کال کښې د بين النهرين اشکاني واکمن کارنس (Carenes) نوميده دا «اوګان» هم هاغه د ساساني عهد (آبګان) ته ورته دی خو په زړو روايتونو کښې د فريدون سپه سالار و چې هغه يې د سمکنان د زوی آوه نومې پهلوان سره منسوباوه خو په شاهنامه کښې دا دوه کسان د کيخسرو د وخت اتلان دي چې له افراسياب سره دده په لويه جګړه کښې داسې ياد شوي دي:

چوکيخسرو آن رزم ترکان بديد، که خورشيد گشت از جهان ناپديد
سوی آوه و سمکنان کرد روی که بودند شيران پر خاش جوي

که د ابګان، اپه ګان او اوګان کلمو ته په زړو رواياتو او د ساساني دورې پاتې شونو کې د باور وړ اهميت ورکړل شي لکه چې سپرنګ لنګ او اولف کيرو همدا نظر لري نو دعوه کولای شو چې د افغان نوم يا صفت د آبګان او اپه ګان به بنه له دريمې عيسوي پيړۍ څخه اخستل کيده، پادشاهانو، اداره چيانو او واکمنانو پيژنده. دويم سند ددې موضوع په هکله په هندي آثارو کښې موندل شوی (ودهامي هيرا) هندي شاعر او منجم چې د (۵۰۵ م) په شاوخوا کښې

شهرت موندلی پخپلو لیکنو کښې د افغان نوم د اوه ګان په ښه یاد کړی دی د همدی تاریخی سند له مخې د افغان کلمه په هندیانو کښې له تر لږه (۱٤۰۰) کاله وړاندې مشهوره وه او هندي لیکوالو یاده کړیده.

همدارنګه چینایي زیارت کوونکی (هیون تسنګ) چې په اومه م پیړۍ کښې افغانستان ته راغلی دی پخپله سفر نامه کښې د افغانستان د خاورې، خلکو، جغرافیایي سیاسی او ټولنیزې اوضاعو په هکله په زړه پورې مواد لري. د پورتنیو درې لرغونو ساساني، هندی او چینایی سندونو نه پرته په اسلامي دوره کښې د افغان د نوم ذکر په دری او عربی کتابونو کښې په مکرر ډول لیدل شوی دی. همدا راز د افغان د کلمی په باب هم ویلای شو چې دا داسې نوم نه دی چې دا حمدشاه ابدالي په وخت کښې دې جوړ شوی وي، بلکې تر ده پیړۍ وړاندې هم دا نوم موجود و خو دومره پراختیایې نه درلوده، لکه چې داحمدشاه بابا په وخت کښې یې تر لاسه کړه.

د افغانستان شمال ته د تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان جمهوریتونه واقع دي. د افغانستان جنوب او ختیځ ته د پاکستان اسلامي جمهوریت او لویدیځ خواته یې د ایران اسلامي جمهوریت موقعیت لري او په شمال ختیځ کښې د چین سره ګډه پوله لري.

سرحدی کرښې:

افغانستان د شمال له خوا د (۲۳۸۰) کیلومترو په اوږدوالی له تاجکستان ازبکستان او ترکمنستان سره ګډه پوله لري چې زیاته برخه یې د امو د سیند پواسطه ټاکل شویده، پورته سرحدي کرښه په (۱۸۷۳) م کال په رسمیت پیژندل شوی ده. دربجوي خط چې د خم آب څخه د ذوالفقار تر درې پرې (۱۰۲۹) کیلومتره اږدوالی لري او په (۱۸۸۷) م کال ټاکل شویدی هم د شمالي سرحدي کرښې یوه برخه ده چې په مجموعي ډول داسې ویلای شو چې شمال سرحدي کرښه عبارت ده د پامیر خط له زرکول څخه د پولی تر درې پورې (۹۱) کیلومتر جمع د امیر شیرعلي خان خط له زرکول څخه تر خم آب پورې

( ۱۲۶۰ ) کیلومتره جمع د ریجوي خط له خم آب څخه د ذوالفقار تر درې پورې (۱۰۲۹ ) کیلومتره چې توله کرښه ( ۲۳۸۰ ) کیلومتره کیږي په شمال ختیځ کښې له چین سره (۹۶) کیلومتره په اوږدوالي ګډه پوله موجوده ده چې له یولي څخه تر واخجیر پورې غزیدلې ده د جنوب او ختیځ له خوا ( ۲۳۱۰ ) کیلومترو په اوږدوالي له پاکستان سره ګډه پوله شته چې د (ډیورنډ ) د کرښې په نامه یادیږي، دا کرښه د امیر عبدالرحمن د پاچاهی په دوره کښې په کال (۱۸۹۳م) د افغانستان او برتانوي هند تر منځه تثبیت شوه چې له یولي درې څخه شروع او د ملک سیاه تر غرونو پورې رسیږي، د دې کرښې یوه برخه ( ۱۰۲ ) کیلومتره له ګلګت نه تر واخجیر پورې د کشمیر په علاقه کښې موقعیت لري. د افغانستان او ایران تر منځه په لویدیځه برخه کښې د میکماهن ګولډ سیمت او فخري خطونه د ( ۹۲۵ ) کیلومترو په اوږدوالي د ملک سیاه له غرو څخه تر ذوالفقار درې پورې ګډه پوله جوړوي.

دلته د یو مطلب یادول ضروري دي، په شمال سرحدي کرښه کښې د افغانستان او پخواني شوروي تر منځه د آمو دریاب بستر تر ډیر ځایه د طبیعي سرحد په حیث منل شوی و خو خبره داده چې آمو دریاب په ځینو ځایونو کښې لکه (درقد او خم آب) له خپلې بړستنې نه پښې ایستلي او د افغانستان خواته یې د تیري په عنوان راغزولی دي.

راځئ دا واقعیت د آمو ځپیړې تر عنوان لاندې د هیواد د تکړه لیکوال او ژورنالیست شهرت «ننګیال» (د مرګ پر وزرو) سفر نامې په (۱۲۸ - ۱۲۹) مخونو کښې ولولو: «په دغه ورځ د خم آب ولسوالی، خدای بردی د امو د سیند نه تازه کبان قوماندان ته راوړي وخو د کبانو د پخولو شوک نه و، سراجی صاحب متې پورته کړې او په لږه شیبه کښې یې وریته کبان زموږ مخې ته کیښودل، د خم آب ولسوالی مر سیتال وویل زموږ ډیره سیمه د امو اوبو لاندې کړې ده، روسانو د شوروي اتحاد په وخت کښې لا د اوبو مسیر دې خواته ګرځولی، د ازبکستان اړخ د اوبو ساحل یې پوخ کړی او استنا دي دیوال یې

پورته کړی چې اوبه ټولې ځمکې پر خوا ژاماتې دي، تر اوسه يې نږدې دولس زره جريبه ځمکه لاندې کړې، ايله شپږ کيلومتر ساحه پاتې ده که دا هم اوبو لاندې کړه د خم اب په ټوله سيمه به اوبه واوړي».

د همدې اثر په (۱۳۱) مخ کښې لولو: «په تخار کښې د درقد برخليک هم همدا ډول دی، درقد او قره تيپه د آمو ځپو را بيله کړی او يوه جزيره يې ترې جوړه کړيده، روسانو درقد ته لاله پخوا سترګې برندې کړې وې، په زيات ګومان چې د آمو د دغې ځانګې په تګ لاري او د درقد په بيليدو کښې هم د روسانو لاس دی.»

په همدې مخ کښې د استاد سعد الدين «شپون» يو آزاد په زړه پوری شعر «درقد مه هيروئ» په نوم هم راغلی دی چې د درقد حالت يې ډير ښه انځور کړيدی.

## د افغانستان اقليم:

ددی هيواد اقليم پدې ډول ويشل شوی دی:

دښتي اقليم – مونسوني اقليم – مديترانه يي اقليم – ستپ اقليم الپاين تندرا اقليم او غرنی اقليم.

### الف – د ښتي اقليم:

پدې ډول اقليمي سيمه کښې د شپې او ورځې او د کال په مختلفو موسمونو کښې د تودوخې د درجې ډير توپير ليدل کيږي، په اوړي کښې د ورځې د تودوخې درجه (٤٨) درجې سانتي ګيراد ته رسيږی او د شپې (۲۵ - ۳۰) درجې سانتي ګيراد ته راټيټيږی او په ژمي کښې بيا تر صفر يا پنځو درجو پورې راټيټيږي پدې سيمو کښې اوربښت لږ کيږي ددې ډول اقليم ځرنګوالی په ګرشک - نيمروز - فراه او سيستان کښې ليدل کيږي.

### ب – مونسوني اقليم:

ځرنګه چې وچه منطقه ژر تو ديږي نو په اوړي کښې توده هوا چې سپکه وي

خپل ځای سرې هوا ته چې درنده وي پرېږدي چې د هند په سمندر کښې انتي سايکلون يا د لوړ فشار ساحه جوړ ېږي په مقابل کښې يې په مېنځنۍ اسيا کښې د سايکلون يا ټيټ فشار ساحه مېنځ ته راځي، د هند د سمندر لمده بله درنه هوا د مېنځنۍ اسيا د دښتو په لور حرکت کوي د خوست سيمه او په ننگرهار، لغمان او کونړ کښې ځنګلي سيمې ددې هوا له اورښتو څخه ګټه اخلي.

## ج – مديترانه يي اقليم:

ددې ډول اقليم خصوصيت دادی چې اوړی يې وچ او تود او ژمی يې معتدل او باراني وی په افغانستان کښې دا ډول اقليم په ننګرهار کښې شته د لغمان او کونړ هوا د دی سيمی هم څه ناڅه په دی اقليم کښې شاملی دی.

د نارنج، مالټو، ليمو او زيتون ونی پکی ښه وده کوي ګنی او شولې پکی ډيری کرل کيږي.

## د – ستېپ اقليم:

دا وچ او بري اقليم دی، په دې اقليم لرونکي ساحه کښې د ورځې او شپې د تودوخې د درجې توپير زيات دی، ژمی پکی اورښت کيږي او د اورښت اندازه يې (۳۰۰) ملي مترو ته رسيږي، پدې ډول اقليمي سيمو کښې واښه ډير شنه کيږي نو د څارويو د روزلو مناسبې سيمې تشکيلوی.

## هـ – الپاين تندرا اقليم:

په هغو لوړ سيمو کښې چې د ځنګلونو او ونو ساحه پای ته رسيږي او نباتات د ونو او بوټو په توګه شنه شوي وي، د الپاين تندرا اقليم په نوم يادېږی، د ناور لوړه سطحه، د غزني او باميانو د ولايتونو زياتې سيمې، د بابا غره، سفيد کوه او سياه کوه لوړې برخې پدې اقليمي سيمه کښې راځي چې واورې پکې اوري، ژمی يې سوړ او اوړی يې معتدل وی.

## و – غرنی اقلیم:

ددې ډول اقلیم لرونکو سیمو زیاتې برخې له (۳۵۰۰) مترو څخه زیات لوړوالی لري، پدې لوړوالي کښې د تودوخې درجه کمیږي خو ّلمده بل او اورښت پکې زیات وي شمالی او جنوبی سالنگ ددې ډول اقلیم ښې بیلگی دي چې واورې او دایمي کنگلونه لري. په افغانستان کښې تودوخی لوړه درجه د نیمروز په زرنج سیمه کښې د سانتی گراد تر مثبت (۵۱) درجو پورې رسیږي او سوړوالی ټیټه درجه د غور ولایت په شهرک سیمه کښې د سانتی گراد تر منفي (۵۲) درجو پورې را ټیټیږي، د نسبتي لمده بل لوړه اندازه په شمالي سالنگ کښې (۱۲۱۲) ملي مترو او ټیټه اندازه یې په زرنج کښې (۳٤) ملي مترو په شاوخوا کښې وي.

# دويم څپرکی

# د افغانستان لرغوني آثار تاريخي ودانۍ، ليک دود، خواړه او لوبې

په نړيوال فرهنګي ډګر کښې زموږ هېواد د غوره ارزښتونو درلودونکي هيواد ګڼل کيده چې د لرغون پيژندنې په برخه کښې يې تاريخي ډګر پراخه او له پنځه زره کلونو څخه هم اوړي.

لومړنی آريايي نسل چې د کسپين د سمندرګي په غاړه، کښې استوګن و چې د دوی د ژوند په هکله تر زرونو کلونو پورې نښې نښانې څرګندې شوي دي، د وګړو د ډيرښت له کبله د امو د سيند (اکسوس) سهيلي غاړو ته راوکوچيدل او په دمه، دمه يې په بخدي او بلخ کښې د مدنيت بنسټ کيښود او د هغه مهال د مخ پر ودې فرهنګ اډانه يې په پښو ودروله او دغه ستر مرکز يې د لوړو بيرغونو ښارونو ماوه، دا بهير دلته تم نه شو، ځښې ټولنيزو او اقتصادي اړتياو دې ته وهڅول چې د ليږديدو او کوچيدو لړۍ لاپسې وغزوي، د همدې خوزښت په مهال ويدي مدنيت چې د پوهې په مانا دی د نړۍ په فرهنګي چاپيريال کښې وتوکيد، وغوړيد او د اړتياو نوي ډګرونه يې رامنځ ته کړل.

آريايان چې د هندوکش په لرو او برو غاړو او څنډو کښې خواره شول نو غرونه، رغونه، درې او ورشوګانې يې تر پښو لاندې کړې او د ګندهارا سيمه يې د خپلې استوګنې لپاره د نورو سېمو په نسبت غوره کړه چې تر دې دمه د دوی جونګړې پرې ابادې او کيږدۍ پرې پلنې دي.

د لرغون پيژندنې د معلوماتو له مخې ويلای شو چې په لومړي وخت کښې دغه نسل په بخدي کښې تر هستيدو وروسته د زردشت (زرتشترا) نومي مفکر په نوښت يې ځانګړی آريايي دين رامنځ ته کړ چې د همدې له نامه سره يې تړاو پيداکړ او زردشتي دين يې باله، او ستا د نوموړي آريايي دين د ښوونو ستر کتاب دی چې په همدغه وخت کښې د غوايانو په ډيرو پوټکو ليکل شوی وچې په درې سوه قبل ميلاد کښې د يوناني سکندر له تاړاکونو وروسته پکې ځينې بدلونونه را منځ ته شول.

څرنګه چې د سکندر لښکرې مخ په هندوستان وخوځيدې له ستونزو سره مخامخ شوې او په شاکيدو ته اړ شول له دې سره جوخت هندي لښکرو د هندوکش جنوبي لمنې د ګندهارا د حوزې په ګډون پخپل قابو کښې راوستې، هندوانو چې د خپل ځان سره بودايي دين او فرهنګي دودونه هم را وړي وو د ګندهارا په حوزه کښې د زردشتي دين په ځای بودايي دين ميدان ته راووست چې کابو د (۵۰۰) کلونو لپاره پدې خاوره کښې واکمن وو، زموږ په هيواد کښې په تيرو زمانو کښې د بوديزم ستر مرکزونه او عبادت ځايونه يو د بل پسې مينځ ته راغلي دي چې د هډې ستر عبادت ځای يې غوره نمونه ده چې د ننګرهار، جلال آباد په جنوب کښې موقعيت لري.

ددې ستر عبادت ځای د کيندونو په نتيجه کښې چې د افغاني لرغون پيژندونکو له خوا تر سره شوي دي ډير ګچي او ډبرين آثار لاس ته راغلي وچې د کورني ناورين په نتيجه کښې شايد زيات يې له منځه تللي وي.

زموږ په هيواد کښې د لرغونو توکو د تر لاسه کولو لپاره پلټنې له ډير پخوا څخه پيل شوي وې خو له انګريزي ښکيلاک څخه وروسته ددې کيندونو دوه ډوله بيلګې موجودې وې:

## ۱- پخپل سر او پټې پلټنې:

پټې پلټنې له (۱۸۳۸ - ۱۸٤۰ م) پورې او بيا د (۱۸۷۹ - ۱۸۸۰م) پورې په کابل او ننګرهار او د هغه په شاوخوا کښې تر سره شوي دي چې د هغې

له جملې څخه په خيبر، هډه، درونټه، خورد کابل، چکړي شيوه کي، بالاحصار، باګرام او ځينې نورو برخو کښې دا ډول پلټنې شوي دي او ځينې قيمتي شيان ورڅخه تر لاسه شوي دي، د بيلګې په ډول په هغو پلټنو کښې چې د ورد ګو، خوات په سيمه کښې سرته وسيدلي دي يو داسې فلزي جام تر لاسه شوی و چې خروشتي ليک پرې ليکل شوی و او اوس د برتانيا د بريتش په موزيم کښې خوندي دی.

## ۲ - قانوني او ښکاره پلټنې:

قانوني پلټنې له (۱۲۹۸) هـ ش کال څخه وروسته ورته پاملرنه شوې وه او د هغې په نتيجه کښې تر لاسه شوي آثار د کابل د موزيم په واک کښې ورکول شوې دي، پوهانو او ماهيرينو پر هغو باندې څېړنې کړيدي او د هغوی تشريح او ډلبندي يې سرته رسولې ده، همدا راز ددې آثارو د ښې ساتنې او څېړنې او تشريح په غرض بهرني ماهرين وخت په وخت کابل ته راغوښتل شوي او تړونونه ورسره لاس ليک شوي دي، زياتو بهرنيو ماهيرينو د کابل په موزيم کښې د افغانستان او نړۍ د پنځه زره کلن تاريخ په هکله څېړنې کړيدي او خپل رپوټونه يې د نړۍ په معتبرو نشراتو کښې خپاره کړيدي. همدا راز د کابل د غنی موزيم د لرغونو آثاو د کتلو لپاره به هر کال ډير بهرني سيلانيان زموږ هيواد ته راتلل ددې موزيم لرغوني آثار په دې ډول ډلبندي شوي وو.

الف - د قبل التاريخ برخه چې په يوه ځانګړې خونه کښې تنظيم شوي وه:

ب - تاريخی برخه:

چې د باميانو - باګرام - ای خانم - مسکوکاتو ځانګړی برخی يې درلودې، سربيره په دې د نورستان او اتنوګرافی برخه په ځانګړې خونې کښې تنظيم شوې وه.

د کابل د موزيم په خوا کښې د هيواد په ځينو ولاياتو کښې منقول او غير منقول موزيمونه وو، چې له هغو څخه د ننګرهار د هډې غير منقول موزيم.

د غزني غيرمنقول موزيم، د کندوز د شيرخان موزيم (چې ځيني آثار يې په

۱۳۵۲ هـ ش ) کښې یې د کابل موزیم ته را انتقال شول، موجود وو.

د شبرغان د طلا تپې کیندل شوې ودانۍ او سپړل شوي قبرونه چې یوازې له یو قبر څخه (۲۲) زره ټوټې طلا یې ګانې تر لاسه شوې او د کابل موزیم ته ورسپارل شوې چې وروسته د امنیتي دلایلو له مخې د جمهوري ارګ د کوټې باغچې موزیم ته ورلیږدول شوې چې د استاد رباني د حکومت تر وخته پورې یې موجودیت یقیني دی.

د اې خانم غیر منقول موزیم چې دغه ښار په یوناني دود جوړ شوی دی د افغانستان په شمال کښې د آمو او کوکچې د سیندونو د یو ځای کیدلو په برخه کښې د آی خانم کلي واقع دی یو نیم کیلومتر اوږدوالی او یو کیلومتر پلنوالی لري چې د کیندنو پوا سطه رابرسیره شوي دی.

د قبل التاریخ په برخه کښې د امریکا د هارورډ پوهنتون، د فرانسې د ګیمي موزیم، د ایټالیا د لرغونپوهنې څانګې او په وروستیو وختونو کښې روسانو د هیواد په شمال کښې د سروی او کیندنو چارې تر سره کړې دي.

همدا راز هندوانو د هیواد په مختلفو برخو کښې د تاریخي آثارو د ترمیم او بیا رغاونې چارې سرته رسولي دي.

د بامیانو په لرغونو آثارو کښې د بودا دوه مجسمې مشهوری دي چې زیات سیلانیان یې جلب کړي و چې د هغ له جملې څخه د نارینه مجسمې لوړوالی (۵۵) متره او د ښځینه مجسمی لوړوالی چې شمامه نومیږي (۳۸) متره دی. (۱)

د هرات منارونه، د چکریو منار، د بست قلعه، د رابعی قبر، د بلخ بالاحصار، قره کمرغار، منډي ګک، پنجوایي، د کابل پخوانی دیوالونه، اژدهای سرخ در بامیان، ضحاک ښار او نور هغه لرغوني آثار دي چې هر یو یې پخپل وار د خاص اهمیت درلودونکی دي.

د کابل موزیم د قبل التاریخ د کوټې په یوه ویترین کښې یوه کوچنۍ د برینه

---

(۱) د افغانستان لرغونی ودانی (۹) مخ د میرمن نان سی اثر (۱۹۹۸ م) پیښور.

مجسمه هم وه چې له آق کوپر ک څخه لاس ته راغلې وه نوعیت یې د شیست ډبره وه او شل زره کاله قدامت یې درلود او د پخوانیو انسانانو د کار نخښې پکې ښکاریدلې په (۱۳۵۵) هـ، ش کښې د کلتوري توأمیت له مخې دا ډبره د تاریخي آثارو د نمایش په لړ کښې د بیمې او ترانسپورت تر خاصو شرایطو لاندې امریکا ته یوړل شوه چې په نمایش کښې یې خاص مقام درلود، نه پوهیږم چې دا ټول منقول قیمتي آثار به اوس چیرته او په څه حال کښې وي خو افغانان باید پوه شي چې دا ټول هر څه د دوی تاریخي میراث دی او هیڅ یو شخص او یا یوه ډله د دې حق نلري چې دا قیمتي آثار د شخصي ګټې لپاره خرڅ کړي او یا یې د چا د خوشحالولو لپاره هغوی ته ور ډالۍ کړي

## ۲ - تاریخي ودانۍ:

د افغانستان د لرغونو آثارو تر څنګ د تاریخي ودانیو یاد هم ضروري دی ځکه افغانستان د پخوانیو لویو تجارتي لارو په مرکز کښې پروت دی، دغو لویو لارو دا ساحه په جنوب کښې له هند، په شمال کښې له مرکزي آسیا، لویدیز کښې له ایران، عراق، شام، مصر، روم، او په ختیځ کښې له چین سره تړله.

د دغو ټولو لیري پرتو سیمو او هیوادو خلک له افغانستان څخه تیریدل او راتیریدل، ځایي خلکو او دغو تلونکو، راتلونکو په دې هیواد کښې ډیرې ښکلې ودانۍ او بناوې جوړې کړې، چې د ځینو ساریې د دنیا په هیڅ ګوټ کښې نه پیدا کیږي.

### ۱ - د چکړیو مینار:

دې مینار کابو دوه زره کاله هغو کاروانونو ته لارښوونه کوله چې د شمال نه د جنوب په لور او له جنوب نه د شمال په لور د کابل په وادۍ تیریدل دا مینار د تخت شاه په څوکه کښې جوړ شوی و، د جوړیدو وخت یې د کوشانیانو زمانې ته رسي دا وخت په سیمه کښې بودایي دین رواج شوی و. دغه مینار شل متره لوړوالی درلود د ۱۳۷۷ هـ، ش کال په حمل د ۱۹۹۸ م د مارچ په میاشت کښې

د نامعلومو عواملو له مخې ونړېد چې د افغانستان د فرهنګي میراث د پاره ستره ضایعه بلل کیږي.

## ۲- بامیان او د بودا مجسمې:

څه ناڅه نولس پیړۍ د مخه جواهر، پوستینونه، نور قیمتي څیزونه د افغانستان په لاره تجارتي کاروانونو لیږدول یو قیمتي څیز هم وریښم وو چې د چین څخه به راوړل کیدل نو ځکه دې لارې ته د وریښمو لار وایي د کوشاني پاچاهانو په تیره بیا د کنیشکا په دوران کښې یې ځانګړې رونق بیا موند.

زیات شمیر چینایي بودایي زایرینو پر همدې لاره سفر کاوه لومړی به بلخ ته راتلل او بیا هند ته د تلو په لاره کښې د هندوکش نه تیریدل د بامیانو په آرامه دره کښې به یې دمه جوړوله، ورو ورو یې دلته عبادت خانې او د بودا مجسمې هم جوړې کړې دا مجسمې په نړۍ کښې د بودا سترې مجسمې دي چې د نړۍ د عجایبو څخه ګڼل کیږي.

## ۳ - د لوګر د ګلدرې استوپه:

د بودا یي دورې نه را پاتې ده، ستوپه هغه مرکزي بنا وه چې چاپیره به ترې مذهبي مراسم تر سره کیدل دغه ستوپې زیاتره ورانې شوې دي اما د کابل جنوب ختیځ ته د لوګر د وادۍ په ګلدره کښې د صومعې (ستوپې) یوه ښه نمونه راپاتې ده.

## ٤ - د ارزګان کتیبه:

دا کتیبه په ۱۹۵۳ م کال کشف شوه د یفتلي دوران د سکو او ددې کتیبې په منځ کښې شباهتونه شته دا کتیبه د زابل هغه سلطان ته منسوبیږي چې د عربو له ظهوره وروسته د هغو یو مهم مخالف ګڼل کیده.

## ۵ - د بلخ د نه ګنبد مسجد:

دا مسجد د حاجي پیاده د مسجد په نوم هم یادیږي، د سامانیانو د دورې

د ودانیو یوه ښکلی او ظریفه نمونه ده دا جومات د بلخ د ښار په جنوبي برخه کښې له ښاره درې کیلومتره لیرې واقع دی کابو په نهمه مېلادي پیړۍ کښې جوړ شوی دی، جومات د نړیدو په حال کښې دی که ترمیم ته یې پاملرنه ونه شي د منځه به ولاړ شي او لکه د چکړیو د مینار دا به د افغانستان د فرهنګ لپاره بله غمیزه وي.

## ٦ – د غزنی یادګارونه

په غزنی کښې د سلطان محمود مزار، د سلطان محمود د قبر ډبر لیک، د غزنی د سلطان دریم مسعود مېنار او دبهرام شاه مینار ډیر د توجه وړ دي.

## ٧ – د بُست کلا:

د بُست د زاړه ښار یوانځی یو تاخ (طاق) د « ٢٥ » مترو په اوږدوالی لا پاتی دی دا ښار په ١٣ مه م پیړۍ کښې چنګیز او په ١٤ مه م پیړۍ کښې تیموریانو وران کړی او له خاورو سره یې برابر کړېدی.

## ٨ – د بابا حاتم زیارت:

دا زیارت په جوزجان کښې دی ددې زیارت د ښنتو په تزین کښې د غزنوی دوران د معمارۍ له سبکه کار اخستی دی. دا مقبره احتمالاً په دولسمه میلادی پیړۍ پورې اړه لري.

## ٩ – د غور د جام مېنار:

د هریرود په غاړه په یوه ګوښه ځای کښې جوړ شوی د معمار نوم یې علی دی دا مېنار « ٦٦ » متره لوړوالی لري دا مینار غالباً په دیارلسمه م پیړۍ کښې جوړ شوی، ډیر ښکلی دی اود قرآن عظیم د (١٩) سورة ټول متن په ډیر مهارت پکښې توږل شوی دی.

## ١٠ – د هرات جامع جومات:

د سلطان غیاث الدین غوری په وخت کښې جوړ شوی دی وروسته بیا ترمیمی کارونه پکی شویدي تاریخی ارزښت لرونکی ودانۍ ده او توجه ورته په کار ده.

## ۱۱ - د هرات مصلی:

د ملکی گوهر شا د تر څارنی لاندې جوړ شوی یو زمان د هرات ویاړ گڼل کیده په جگړو کښې ورته تاوان رسیدلی د نړیدو حالت ته ورنږدې شویده.

## ۱۲ - د هرات گازرگاه:

د شاه رخ په وخت کښې جوړه شوی گازرگاه شریف او د خوجه عبدالله انصاری زیارت ښکلی تاریخی ودانی دي، پل مالان او د هرات چارسوق د معمارۍ د هنر له پلوه ځانگړې اهمیت لري.

## ۱۳ - د اختیار الدین کلا:

دا کلا په ۱۳۰۵ م کال جوړه شویده، چنگیز خان او گوډ تیمور هم ددی کلا په لمنو کښې د جگړو خاطرې پرېښې دي یونسکو د تاریخي اهمیت له پلوه د شلمې پیړۍ په اویایمو کلونو کښې پکې څه ناڅه ترمیمات وکړل.

## ۱٤ - د شاه ولایت ماب روضه:

په مزار شریف کښې دا ستره د شان او شوکت لرونکی مقبره د حضرت علی کرم الله وجهه مدفن گڼل کیږي. داودانی یو اوږد تاریخ لري، دا وداني چې لومړی ځل په ۱۱۳٦ م کال د ستر سلجوقی واکمن سلطان سنجر له خوا جوړه شوی وه، د چنگیز خان د تاړاکونو له امله خرابه شوه. تیموری پاچا سلطان حسین بایقراء دا وداني بیا جوړه کړه. ددې ودانۍ موزائیک کاشیکارۍ آرایش د هرات د سبک په پیروي شوی دی.

## ۱۵ - په بلخ کښې د خواجه ابو نصر پارسا زیارت:

خواجه ابو نصر پارساد الهیاتو یو نومیالی پوه و، هغه مدرسه چې ده پکې تدریس کاوه د سلطان حسین بایقراء د مور فیروزه بیگم له خوا جوړه شوې وه. دی وروسته بلخ ته راغی په ۱٤٦۰ م کال په بلخ کښې وفات شو. د خواجه ابونصر پارسا د مزار په ودانۍ کښې د تیموریانو د معمارۍ د سبک نفوذ لیدل کیږي ډیره ښکلې او زړه راښکوونکی ودانۍ ده.

## ۱۶ - د کابل د بابر بڼ:

پخپله د بابر بڼ، د هغه قبر او قبر ته نږدې جومات تول فرهنګي ارزښت لري د مغولي امپراطورۍ د دغه موسس په بڼ کښې ځیني جوړوني د شاه جهان پورې اړه لري.

## ۱۷ - د کندهار چهل زینه

د امپراطور بابر په امر د شهزاده فیروز بخت تر څارنی لاندی د ۹۲۸ - ۹۳۷ م پورې د کندهار د زاړه ښار شاته په یوه غره کښې یوه کوټنۍ وتوږل شوه څلویښت پلیزه زینه سړی دغی کوټنۍ ته رسوی چې دوه ډبرین زمریان یې ساتنه کوي.

## ۱۸ -د احمد شاه بابا زیارت:

په کندهار کښې د دغه نومیالی شخیصت د زیارت ودانۍ ډیره ښکلې په زړه پورې تاریخي ودانی ده.

## ۱۹ - د میرویس خان هوتک زیارت:

میرویس هوتک په ۱۷۰۹ م کال همدلته د فارس له حاکمیته خپل استقلال اعلان کړ، د کندهار، هرات د لوی واټ په غاړه واقع دی، دا ودانی د جوړښت له پلوه د احمدشاه بابا د زیارت سره ورته والی لري.

## ۲۰ - په کابل کښې د تیمور شاه مقبره:

د تخته پل جومات، د باغ بالا مانۍ، د شهرارا دروازه، د پغمان طاق ظفر، د پغمان په بالاباغ کښې کوټی سرخ او د پغمان د باغ عمومي مانۍ هم د تاریخي ارزښت درلودونکی پخوانی ودانۍ دي.

## ۳ - د افغانستان د پخوانی لیک دود ډولونه:

په (۱۳٤۹) هـ، ش کال کښې د لغمان په الیشنګ دره کښې یوه ډېره پخوانۍ کتیبه کشف شوه چې لیکُ یې مستقیمو او منکسرو پیوسته خطونو څخه جوړ دی. په افغانستان کښې د پخوانیو مروجو خطونو څرک پر لاندې ډول لګیدلی دی.

## الف – ارامي ليک:

د سوريې له تل سنجرلی څخه هغه نمونه په لاس راغلې ده چې په افغانستان کښې له ميلاد څخه پخوا په اتمه پيړۍ کښې يې رواج درلود د افغانستان لرغونې ليکنې ښکاروندی دی.

## ب – خروشتي ليک:

له ارامي ليک څخه وروسته مينځ ته راغلی دی له ښي خوا څخه چپ خواته ليکل کيږي د ليک دغه ډول په ختيځ افغانستان کښې تر پنځمې ميلادي پيړۍ پورې دوام درلود.

## ج – براهمی ليک

د پخوانی خطونو څخه دی چې د ځينو په عقيده پخوانۍ هندي نيلی (ريشی) لری مبدا يې ارامی ليک دی له ښي خوا څخه چپ خواته ليکل کيږی.

## د – يونانی ليک

چې تر اتمې م پيړۍ پورې يې دلته رواج درلود.

## هـ – تخاري يا باختری ليک:

تخاري ژبې ته د باختري عصر يا کوشاني دور ژبه ويل شوې ده چې له دويمې ميلادي پيړۍ څخه تر لسمې ميلادی پيړۍ پورې يې (۸۰۰) کاله رواج درلود، ځينې عناصر چې په پښتو، پهلوي، سنسکريت او ترکي کښې شريک دي (۲۵) توري يې په تخاري کښې پيژندل شوي دي.

## و – پهلوی ليک

چې مبدا ء يې ارامي خط ګڼل کيږي له ښي لورې څخه کيڼ لوري ته ليکل کيږي او ډير وخت نوموړي ليک په آشکاني او ساساني دربارونو کښې رسميت درلود.

ز – این د بیره لیک:

له شپږمې میلادي پیړۍ څخه د اسلام تر راتلو پورې یې د آریانا په لویدیځو برخو کښې رواج درلود چې ټول ټال یې (٤٤) غیږیزې نښې درلودې له ارامي، فارسي، پهلوي او یوناني ژبو د الفبا څخه ترتیب شوی و، له ښي طرف څخه چپ طرف ته لیکل کیده.

ح – سفري لیک:

د مینځنۍ آسیا له آریایي ژبو څخه یوه ده او له ارامي لیک څخه مشتق شوې او دری توري لري (ا – و – ی).

ط – عربي لیک دود:

له ارامي ریښې څخه راجلا شوې په پنځمه میلادي پیړۍ کښې یې رواج درلود، د لسمې پیړۍ په اوایلو کښې کوفي خط ته نږدې بلل شوی دی.

ی – ریاسي لیک:

د عباسیانو په عصر کښې مروج و.

ک – کوفي خط:

چې نفوذ یې د سیند په وادۍ کښې زیات و او د تکامل دوران یې د غزنویانو واکداري ګڼلی شو.

ل – بابري لیک:

چې بابر هغه په (۹۱۰ هـ) کښې مینځ ته راوړ.

م – پښتو لیک:

پښتو ژبه چې د ډیر ویونکي لري په (۷ – ۸ – ۹) میلادي پیړیو کښې د غزني، غور او لودیانو په دربارونو کښې او هم د سیلمان د غره په پښتنو قبایلو کښې د ادب او شعر ژبه وه، د دې ژبې په لیک کښې اته داسې خاص توري شته چې په فارسۍ او عربۍ کښې نشته او هغه توري دادي: (ټ، څ، ځ، ډ، ړ، ږ، ښ،

ن) . همداراز په لومړی او دویمه میلادي پیړی کښې د کوشانیانو د محلي مشرانو لکه هفتالیانو په دربار کښې هوه ژبه موجوده وه چې اوسنی فارسی یا دری مور ورته ویلای شو او ددغې ژبې ډېر پخوانی اثر د بغلان د سرخ کوتل په کتیبه کښې په لاس راغلی دی چې په یوناني شکسته لیک دود سره لیکل شوی دي.

## ٤ - د افغانستان خواړه او لوبې :

### الف - خواړه:

افغانستان د نړۍ د هیوادونو او تمدونونو په ځلور لارې کښې پروت دی، که سړی ورته زیر شي تقریباً د نړۍ ډېرو هیوادونو ته ورته خواړه او د لباس نمونې پکې موندلای شي سره له دې هم زموږ په هیواد کښې لاندې خواړه تقریباً عمومیت لري او هر څوک یې د افغاني خوړو په توګه پیژني:

پلو، چلو، قابلي، سیخي، منتو، اش، شوروا، پیاوه (تاو دی) تندوري، قورمه، پکوړې، کیچړي، حلوا، دوه پیازه، شوله، شلغم بته، پیاتي، اوماچ، اوګره، شیر برنج، سابه، نخړی، بګاړ، لیتې، ملخوزی، شرومبې، مستې، پوڅه، پیروی، خرېړی، کوچ، کاړی، بورانی، شوده، غوړی، سمنک او نور.

### ب - افغاني لوبې:

زموږ په هیواد کښې له عصری او بین المللي لوبو لکه فوت بال، والیبال، باسکتبال، هاکي او نورو سربیره ملي لوبې هم رواج لري چې د هغې له جملې څخه لاندې لوبې مشهورې دي:

کلا، کلا - توپ ډنډه - کبډی - خوسی - مرغومکۍ - غیږ ایستل - اتڼ - وزلوبه - یخمالک - کاغذپراني (ګوډۍ الوزول) - کوږ جنګي - اسپ دوانی، ښکار، ډوبلې، لویه پنډوسکه جګه پنډوسکه، پټ پټوني، بنګړې مات، بابا توله تولنګي، شادومپې، جوګیر، ډې، ښخه ډې، مایه، چوتې، میخ ټک، پاچا وزیر ګوته، اکوبکو او داسې نور.




# دریم څپرکی

# طبیعي زیرمې (کانونه او ځنګلونه)

کاني لعل د بدخشان ګیاه کیمیا ده     چې یې نه پېژني ته ګناه د چا ده

## الف - کانونه:

د یو هېواد آبادۍ او پرمختګ لپاره کومې طبیعي زیرمې چې ضرور دي او مهم رول لري (سیندونه، کانونه او ځنګلونه) دي لوی خدای «ج» زموږ په ګران هېواد دا واړه لورولي دي. که دا څپاند، څپاند سیندونه مهار شي او د بریښنا بندونه ورباندې جوړ شي، که د وطن له پراخو ځنګلونو څخه په فني توګه ګټه واخستل شي، او که تر ځمکې لاندې پټې خزانې زموږ د خپلو فکرونو او متو په زور رابهر شي نو بیا به زموږ د کرنې ځمکې ولې جل وهلې وي او په باغونو کښې به موولې زوزان شنه کیږي، پدې (۲۱) مه م پیړۍ کښې به ولې د تیلو د یوې ته اړ وو؟ ولې به د لرګي خط کش د بهرنه په اسعارو اخلو؟

د پنجشېر غمي مو د پاریس د پیغلو ښکلا جوړوي، پداسې حال کښې چې دلته په هېواد کښې د ملالۍ خویندې ببر سرونه، چاودې پوندې، وچې شونډې یوازې د اوښکو امېلونه په غاړه ګرځوي.

هو موږ ته خدای «ج» هر څه راکړي خو اتفاق، حوصله، زړه سوی او وروري راکې نشته او هر یو پخپل ځان مین یو.

د افغانستان د ګټورو موادو له نقشې څخه داسې معلومېږي چې تر اوسه

پوزې په افغانستان کښې لاندې کاني موادو ثرک لګیدلی دی:
اوسپنه، منګانیز، کرومین، سرب او جست، مس، باکسیتونه (باکسیتها)، بریلیوم، قلعي، سره زر، سیماب، لاجورد، ارګونیست، فلوریت، سلفر، باریت، مالګه. پاسفوریت، تالک (شوکاني) ګرافیت، ابرک، مرمر، نفت، ګاز، د ډبرو سکاره، اورانیوم، مزالي اوبه او نور.
په همدې هکله یوه ورځ یو انجنیر سره غږیدم په توکه یې وویل: وروره په افغانستان کښې د منده لیف د جدول د ټولو عناصرو کانونه شته خو مونږ له جګړو څخه نه وزګاریږو، ټولو ته ثرګنده ده چې د هو هیواد د پرمختګ لپاره په تېره بیا د صنعتي کیدو لپاره او مو موادو مخصوصاً کاني موادو ته اړتیا لیدل کیږي سره له دې چې په افغانستان کښې پریمانه کاني زیرمې شته خو تر اوسه افغانستان د نړۍ د هغو هیوادونو په کتار کښې دی چې له کاني زیرمو څخه یې ګټه نه ده اخستل شوې.
له جګړې مخکې کلونو کښې یوازې له مالګې، ډبرو سکرو، شوکاني، تیلو، طبعي ګاز او ځینې قیمتي کانو څخه ناڅه ګټه اخستل کیده.
دا چې په کاني زیرمو کښې نفت او ګاز مهم توکي دي او ذخیرې یې د هیواد په شمال کښې پرتې دي، راځئ یو ځل بیا د شهرت «ننګیال» سره دغې سیمې ته سفر وکړو او له ده څخه واورو: «د جرقدق ګازي زیرمې د شبرغان په (۱۷) کیلومترۍ کښې پرتې دي چې په (۸ X ٦) کیلومتره واټن کښې (۳۳) حلقې څاګانې کیندل شوي، ګاز او نفت د ډبرو له سکرو وروسته د سونګ د موادو ستره سرچینه ګڼله کیږي.
د هیواد په شمال کښې جیولوجیکي پلټنې له (۱۳۱۰) هـ، ش کال څخه پیل شوي او تر (۱۳۳٤) هـ، ش کال پورې غزیدلې دي، پدې توګه د هیواد شمال د نفتو او ګازو د شتمنو زیرمو په توګه پیژندل شوی دی.
په لومړي ځل د دغو پلټنو لپاره امریکایی او سویډني کارپوهانو او کمپنیو په ځیرنو پیل وکړ امریکا یي ماهرینو د (یتبم طاق سیمه) چې د شبرغان په لس

کیلومتری کښې پرته ده، تشخیص کړه او سویډنیانو له سرپل سره په انګوټ کښې د ځاګانو کیندل پیل کړل خو بې پایلې پاتې شول، چې د پخوانۍ شوروی توطیې د یادی شوی ناکامۍ لاملونه ګڼل کیدای شي. په دغو پلټنو کښې د افغانستان لومړنۍ نفت لرونکي ساحي کشف او تثبیت شوې چې ورسره د ځاه ګانو برمه کول او مونتاژ پیل شو.

په (۱۹۵۸/۱/۳) م نیټه د افغانستان او شوروي اتحاد تر منځ د تړون په لاس لیک کیدو د تخنو اکسپورت کارپوهانو په ژورو جیولوجیکی کیندونو پیل وکړ او ګڼې ځاګانې یې له (۱٤۰۰ - ۲۰۰۰) مترو پورې وکیندلی په لومړي پنځه کلن پلان کښې په شمال کښې د ګاز او تیلو د لټون چارې بشپړې شوې او په دویم پنځه کلن پلان کښې (۱۸) اکتشافي او (٦۲) استخراجي ځاګانو د برمې چارې مکملې شوې.

چې تر (۱۹٦۷) م پورې درې میلیارده مکعب متره ګاز استخراج شو چې له دې جملې څخه دوه نیم میلیارده متره ګاز پخواني شوروي اتحاد ته صادریده، دغه ځاه ګانې په جرقدق، خواجه ګوګرد ک، یتیم طاق، او خواجه بُرهان کښې کیندل شوې چې ټولې زیرمې یې (۹۰۰۰۰ - ۱۱۰۰۰) مترو مکعبو ته رسیږي.

د آق دریا زیرمې د (٦/۲) میلیون ټنه او د انګوټ د (۷/۲) میلیون ټنه خامو تیلو د تولید ظرفیت لري.

په (۱۹۵۸) م کال د یوې تخنیکي او اقتصادي موافقې په لاس لیک کیدو د افغانستان په شمال کښې د شوروي، چکی او رومانیایي کارپوهانو له خوا په ګډه د پلټنې چارې پیل شوې په تیره بیا رومانیایي کارپوهانو په ډیره اغیزمنه توګه کار ته دوام ورکاوه خو په (۱۹٦۲) م کال د شوروي اتحاد او رومانیې تر منځه د اختلافاتو په رامنځته کیدو له افغانستان څخه د ختیځ بلاک کارپوهان هم رخصت شول او د افغانستان د طبیعي زیرمو په پلټنه یوازې شوروي اتحاد خیټه واچوله، پدې ترڅ کښې د یتیم طاق د ګاز معدن یوه ځاه ظاهراً د تخنیکی رژیم په پام کښې نه نیولو له امله یاغي او له کنټرول نه ووت او له ځاه څخه ګاز په

ډېر لوړ فشار فوران وکړ چې د تخنیکي او روغتیايي غوښتنو له امله ورته اوړ واچول شو او پوره درې کاله د نوموړي معدن ګاز سوزېده، چې د اټکل له مخې له (۳۰ - ۳٤) میلیارده متر مکعب ګاز به سوزېدلی وي، شوروپانو له زړې تکنالوژۍ څخه په استفادې د شویو برمه کاریو په موثریت منفي اغیزې پرې ایښې، پدې مانا چې د یتیم تاق ځاګانو، د خواجه ګوګرد ک ځاګانو، د جنګل کلان ځاګانو، او د جمعه معدن ځاګانو د برمه کارۍ چارې د (۳۲) کلونو په شاوخوا کښې سرته رسیدلي چې د نړیوالو معیارونو په بنسټ د نوې تکنالوژۍ او برقي برمو په مرسته د سرته رسول شو یو کارونو لپاره تر (۱۵ - ۱۷) کالو پورې وخت کفایت کاوه. سربیره پر دې د دغو ساحو په اړه احصایوی او د پلټنو له راز نه نوړ ډ ک او ارزښتناک اسناد هم شوروپانو له ځانه سره وړي دي، په دې توګه زموږ د هیواد د طبیعي زیرمو د کمیت او کیفیت د اسرارو ډیره برخه له روسانو سره ده ځکه خو سرې ویلای شي چې د افغانستان د شمال او شمال لویدیځو د تیلو او طبیعي ګازونو لټونې نیمګړې او ریښتنې زیرمې نه دي کشف شوي، څرنګه چې د کشف شویو ساحو د پلټنې او تولید چارې ټوازې د شوروي کارپوهانو له خوا تر سره کیدې او افغاني انجینرانو ته یې دا موقع نه ورکوله چې معلومات تر لاسه کړي، نو د شوروپانو پر تللو افغاني انجینران په ځانګړي ډول د کار پرمخ بیولو کښې له کړاو سره مخامخ او د کار پایله اغیزمنه نه وه.

هغه ځاګانې چې د شوروي ماهرینو له تګ سره کانزرویشن شوې د هغوی د ریکانزرویشن لپاره ښايي بیرته روسی ماهیرین راوغوښتل شي.

روسي کارپوهانو چې پراخه صلاحیتونه او آزادۍ یې لرلی، ټولې چارې یې له تخنیکي معیارونو څخه لیرې، پخپله ګټه سرته رسولي اود لګښت کچه یې هم پخپل زړه لوړوله، روسانو هیڅکله اجازه نه ورکوله چې د ځاګانو به سیمنتاژ کښې له افغاني سیمینټو چې د نوعیت او مارکیټ له پلوه تر روسي سمنټو ښه او غوره دي ګټه واخستل شي، دوی به د هرې ځاه لپاره په زرونو ټنه سمنټ له شوروي اتحاد څخه واریدول او پخپل زړه به یې د هغوي بیه ټاکله،

روسانو د تیلو له تصفي سره علاقه نه درلوده نو کله چې په (۱۳۵۲ هـ ش) کال کمپنۍ د امریکا او چکوسلواکیا سفیرانو په دې اړه د مینې څرګندونه وکړه روسانو د تیلو د چاڼ ځای د ودانولو لپاره چمتووالی وښود، خو د شهید محمد داود د رژیم له نسکوریدو سره د دغه ژمنه یوازې د کاغذ پرمخ پاتې شوه، شوروي اتحاد ته د ګاز صادریدل چې په (۱۳٤۸ هـ ش) کال پیل شول له ټیوال نرخ څخه په ډیره ټیټه بیه جریان درلود، د کارتول اسناد د روسانو په لاس کمپنۍ و، خو تر هغه ځایه چې معلومه شوې زر مکعب متره ګاز له (۱،٥) ډالرو نه پیل ترپنځو ډالرو پلورل کیده، هغه هم په کلرنګ ډالر، د شهید محمد داود خان په ټېنګار دغه قیمت (۲٥) ډالرو ته لوړ کړای شو، د شوروي اتحاد د ورکړ شویو اسنادو له مخې تر ۱۳٦۷ هـ، ش کال پورې (٤۸۰٥) میلیارده مکعب متره ګاز شوروي اتحاد ته صادر شوي چې د صادر شوي ګاز کچه دقیقه او ربښتنې نښې اټکلیدای.

لکه مخکې مو چې وویل روسانو د افغانستان شمال ټولی زیرمې پخپله ټیکه او انحصار کمپنۍ ساتلې وې او نه یې پریښودل، چې د نورو هیوادونو کارپوهان هلته پلټنې تر سره کړي پر همدې ټکي د بریژینف او مرحوم محمد داود خان مناسبات ویجاړ شول، د دوو مغرورو انسانانو تر منځه یوازې د پنځه دقیقو خبرو ظاهراً یوې جزوي پیښې دوې لسیزې دمخه د نړۍ د تاریخ په مسیر کې حیرانوونکی بدلون راووست او یو ځل بیا یې د تاریخ لیکونکو داسې یوې نظریې ته چې کله، کله جزوي حوادث د تاریخ عمومي جریان ته تغیر ورکوي، یو واقعي او ژوندۍ تر نظر لاندې مصداق پیدا کړ. له (۱۳٦۷ هـ، ش) کال را هیسې پخواني شوروي اتحاد ته د ګاز لیږدول بند شوی.

انجنیر حیات الله چې موږ ته یې معلومات راکول وویل: (۱)

د شبرغان ګاز نلونه په غیر فني توګه د پهلوانانو له خوا خپلو سیمو ته غزول شوي، د دوستم کلی (خواجه دوکو) ته چې کوم نل غزول شوی

(۱) انجنیر حیات الله د شبرغان د تفحوصاتو په برخه کمپنۍ دنده لري.

د هغې قطر ( ۱۸۰ ) ملي متره دی چې پدې کچه نل د څو ښارونو لپاره د گاز لیږدونې توان لري، له بلې خوا دوی هغه نلونه غزولي چې د ځاگانو لپاره دي، نه د گاز د لیږدولو لپاره، په دغو نلونو کښې د څلورو اتمو سفیره په فشار گاز جریان لري ده وویل: «گاز په دریو پړاوونو کښې چاڼیږي، په لومړنۍ تصفیه کښې سلفر ترې بیلیږي بیا اوبه او کاندنسر او په دریمه مرحله کښې ډیزل او پترول».

د گازی بریښنا فابریکې وروسته له هغې چې له ازبکستان سره د بریښنا تړون لاس لیک شو، ودریده او څه لاسونه هم وراوړده شول، که څه هم ترکمنستان پکې څه ترمیمات وکړل، خو گټه یې ونکړه، د شورویانو د یرغل په وخت ببرک کارمل د هیواد ولایتونه د شوروي په جمهوریتونو پورې وتړل او له بیلا بیلو جمهوریتونو سره یې د تواميت تړونونه وکړل، پلازمینه کابل یې تر مسکو او نور ولایتونه یې له بیلابیلو جمهوریتونو سره په اصطلاح د دوستۍ او مرستې په چوکاټ کښې د گډو همکاریو په نوم وپېیل، چې د «کابل او مسکو» د تړون سندرو او شعرونو راډیو او مطبوعات په سر اخیستي وو.

انجنیر حیات الله وویل:

د جرقدوق ځاگانې د ( ۲۰۰۰ – ۲۴۰۰ ) مترو تر منځ ژوروالی لري، اوس ( ۱۲۰ ) ځاگانې فعالې دي، مخکې ( ٤۰۰ ) ځاگانې فعالې وې.

د دغه زیرمو د گاز نوم (میتان) دی، په گازونو کښې د سلفر د کچې له مخې تو پیرونه لیدل کیږي.

ددې د ضرر اندازه زیاته نه ده.

ده وویل «روسان چې له افغانستان څخه وتل ډیرې ځاگانې یې په ځانگړیو موادو ډکې کړې، دغه زیرمې په ( ۲٤ ) ساعتو کښې د ( ٤۰۰۰ ) مکعب متره گاز د ورکولو ظرفیت لري».

په شبرغان کښې گاز هغه کورونو او کلیو ته غزول شوی چې اوسیدونکي یې ازبکان دي. له گاز نه د تیلو د تصفیې او خښتو په بټیو کښې هم گټه اخستل

کیږي، په کورونو کښې د ګازي نغریو اور نه مړ کیږي او دا تکلیف څوک نه زغمي چې هر ځل نغري ته تیلی ورته کړي.

د یر کورونه په نلونو پوښل شوي او د لرګیو په ځای پکې وسپنیز نلونه کارول شوي دي، لکه مخکې مو چې وویل:

د ګاز نلونه په فني توګه نه دي غزول شوي، د یره برخه یې ضایع کیږي، پخوا د ګاز د څاه ګانو او تأسیساتو سیمه ممنوع سیمه وه او تګ راتګ پکې له یوې مخې بند و، وروسته غوبل پکښې جوړ شو او سړکونه پکې وغزیدل. ده د یوې څاه د برمې خوله پرانستله ګاز په دومره چټکتیا راووت چې نږدې شل متره خاوره له ځمکې پورته کړه، ځمکه یې ښه ولړزوله او موږ یې هم ښه وویرولو.

لنډه دا چې د افغانستان هغه اتلس چې له ډیرو څیړنو وروسته د شلمې م پیړۍ په اتمه لسیزه کښې خپور شوی دی د افغانستان د کانونو په اړه داسې مطلب لري (افغانستان د بیلا بیلو جیولو جیکي جوړښتونو په درلودلو سره زیاتی کاني زیرمې لري، لکه د تیلو او ګاز زیرمې اوسپنه، مس، کروم، جست، سرب، بیرایټ، سره زر، او ځینې قیمتي او نیمه قیمتي ډبرې.

نو داسې نتیجه په لاس راځي، چې افغانستان پراخه ارزښتناکې کاني زیرمې لري، که خدای «ج» افغانانو ته ددې وس ورکړی چې ګټه ترې واخلي.

ب - ځنګلونه:

په افغانستان کښې یو میلیون هکتاره ځمکه چې پنځه میلیونه جریبه کیږي د هیواد په سلو کښې ۵ , ۱ سیمه جوړوي ځنګلونو نیولې ده. ددې ځنګلي سیمو زیاته برخه په پکتیا، پکتیکا، ننګرهار، کونړ او لغمان کښې ده.

په دې ځنګلونو کښې په عمومي ډول د څیړۍ، نښتر، لمنځي، بیجور، سرپ، ارچې، ریمه، غوزان، پنجه چنار، جلغوزی، چاکه (غرنی ګیلاس) او د اوبښتې ونې شته.

د هیواد په شمال لویدیځ د بادغیس او سمنګانو په ولایت کښې د سیمی ځنګلونو (۱۵۰۰) جریبه ځمکه نیولې ده. ددې سیمو د ځنګلونو له حاصلاتو

شخه هر کال لې تر لږه (۱۳۰۰) ټنه پسته بهرنیو هیوادونو ته صادریده د پستې ونو له ډیرې زمانو راهیسې د افغانستان په ملي اقتصاد کښې زیاته مرسته کړیده، یو وخت یې د هندوکش په شمالي لمنو کښې له بدخشانه تر هراته پورې د یوه حاصل خیزه کمربند بڼه درلوده، خو دغه کمربند د بې پروایي او غیر فني گټې اخستنې له کبله نن څو ځایه شلیدلی ښکاري چې ښه مثال یې د سمنگانو په ولایت کښې د رباطک غاښې دي.

په افغانستان کښې له (۲۲) کلنې جگړې نه پخوا د پستې ځنگلونو ته خاصه توجه کیده او حکومتي ساتونکو به یې څارنه کوله هیچا ته اجازه نه وه چې د سونگ لپاره د پستې ونې پرې کړي او یا له ټاکلې نیټې (د پستې شول) څخه مخکې د پستې په راټولولو لگیا شي، دواړه کاره جرم گڼل کیده او سرغړونکي به د امنیتي څانگو د موظفینو له خوا تر جلب او احضار لاندې نیول کیدل او پوښتنه به ترې کیده او حتی بندیانیدل به، خو له بده مرغه د جگړې د دوام په کلونو کښې د پستې ځنگلونو ته ډیر تاوان ورسید او هر وخت خو داسې اوازه خپره شوه، چې د پستې د ونو نیلې ریښې په بهرنیو هیوادونو کښې د درمل جوړول لپاره په لوړ قیمت خرڅیږي، چې بې شکه دغه آوازه د افغانستان دښمنانو خپره کړې وه او زموږ یو شمیر وطنوال په تیره بیا د خپلو گټو مینان ددې دروغجنې اوازې ښکار شول او پخپلو لاسو یې د پستې د ونو بیخ وویست او تباه یې کړې او هغه د چا خبره خپلې پښې یې په تبر ووهلې.

د پکتیا، ننگرهار او کونړ په ځنگلونو کښې په څو تېرو کلونو کښې د چارتراشو لرگي په غیر فني او بې رحمانه توگه پرې شول، په تیره بیا د کونړ د چارتراشو د لرگیو د لاریو کاروانونه له جلال آباد، کابل او بیا د کویټې له لارې کراچې او بیا له هغه ځایه عربي هیوادونو ته وړل کیږي، به داسې حال کښې چې دا ځنگلونه د افغانستان د ټولو خلکو گډه شتمني ده، خو اکثره خلک نه پوهیږي چې څوک او د چا په اجازه په ارت مټ دا د ټولو افغانانو گډه پانگه او شتمني لوټي.

پردې سربیره په وروستیو کلونو کښې دوه، درې ځله د ننګرهار او کونړ پر ځنګلونو تباه کوونکي اوروونه ولګیدل، چې په غالب ګمان د غرض لاس به پکښې وي.

په هر صورت د ځنګلو شته والی لاندې ګټې لري.

۱ - د اړتیا وړ لرګي ورڅخه په لاس راځي.

۲ - د سیلابونو مخنیوی کوي.

۳ - د وحشي ژویو چې اقتصادي ارزښت لري د پناه ځای جوړوي.

٤ - د تفریح او هوا خوری سیمې تشکیلوي.

٥ - د لمده بل په ساتلو کښې مرسته کوي او د چاپیریال د پاکوالی سبب کیږي.

٦ - په زیاته اندازه مېوې لکه غوزان، جلغوزي، پسته، ځنګلي انګور اینځر او زرد آلو ورڅخه په لاس راځي.

د ځنګلونو د له مینځه تګ په صورت کښې نه یوازې پورتنۍ ګټې له لاس ځي بلکې د ځمکې د تخریب او احتکال اندیښنه زیاتیږي او هر کال د بارانونو او سیلابونو پواسطه میلیونونه ټنه حاصل خیزه خاوره پرې مینځله کیږي او بالاخره د سمندرونو خوراک شي او موږ ته په هېواد کښې ورڅخه یوازې کاڼي پاتې شي. په لنډه توګه باید ووایو، چې د ځنګلونو له منځه تګ د افغانانو پر ژوند ډیر منفي او نه جبیره کیدونکی اغیز پریباسي.

# څلورم څپرکی

## جهیلونه

هغه جهیلونه (ډنډونه) چې په دښتي ځمکو کښې واقع دي، معمولاً تروې اوبه لري او په اوړي کښې يې ځينې وچيږي خو هغه جهيلونه چې په غرنيو سيمو کښې پراته دي اکثراً يخچالي سرچينې لري او د دايمي اوبو درلودونکي وي، که څه هم په افغانستان کښې جهيلونه کم دي، خو ځينې يې د توجه وړ ګڼل کيږي.

### ۱ - د زرکول جهيل:

د (٤١٢٩) مترو په لوړوالي د پامير په سيمه کښې پروت دی چې د (۱۸) کيلو مترو په اوږدوالي د پخوانی شوروي او افغانستان تر منځه سرحد تشکيلوي.

### ۲ - د بند امير جهيل:

نوموړی جهيل د بابا غره په لمنه کښې د (۲۹۱٦) مترو په لوړوالی پروت دی او په زړه پورې منظره لري، هغه وخت چې په افغانستان کښې د کور ګډې جګړې تغر نه و خپور شوی او امنيت و، زموږ هيواد ته به بهرني سيلانيان تلل راتلل، نو بند امير د يو سيل ځای په حيث ډير مراجعين درلودل.

### ۳ - د سپين غره جهيلونه:

تر کومه ځايه چې ما د جغرافيې کتابونو ته مراجعه وکړه زموږ پوهانو او

خيړونکو د سپين غر د جهيلونو ( طبعي ډنډونو ) په هکله څه نه دي ليکلي په داسې حال کښې چې د سپين غره د مشهورې (سپينې څوکې) چې د سيکارام په نوم يادېږي او (٤٧٥٦) متره لوړوالى لري په لويديځ کښې تقريباً د (٣٠٠٠) مترو په لوړوالى پنځه جهيلونه موقعيت لري، چې د دې ساحې د واورې او باران اوبه تل د هزارناو خوړ ته راتوييږي، هزارناو هغه مشهور خوړ دى چې د ننګرهار له مرغې څخه تر شابيو پورې د خوړيانيو مربوط، له ګورګورۍ څخه تر ګزارې د شينوارو مربوط او له مزينې څخه تر برو پورې د روډاتو مربوط ځمکې پرې خړوبيږي، د بتي کوټ د ولسوالۍ مربوط باريک اب او چارده ي په سيمو کښې د کابل سيند ته ورګډيږي له دې پنځو واړو جهيلونو څخه جلا، جلا يوه ژرنده اوبه له موقعيت څخه ډير راتيټ د هزارناو خوړ ته راتوئيږي. له دې پنځه جهيلونو څخه درې يې د الادين ناو سرته د سنګو په سيمه کښې دي او دوه نورې د ترکانۍ په برخه کښې دي . که څه هم دې ډنډونو ته د لوړې مينې او اوغز له کليو څخه پلې لارې ورغلي دي، خو ښه ليارة هماغه ده چې له مرغۍ څخه دې ډنډونو ته ورځي، که څوک وغواړي چې د شابيو له تنګي څخه د دې جهيلونو ليدلو ته ورشي نو لومړي به له دې تنګي څخه د مرغې تر قريې پورې درې څلور ساعته پلې مزل کوي، ځکه هلته د نقليه وسايلو او هوټلونو درک نشته، يوازې په لاره کښې له جهيلونو څخه د دوه درې ساعتو مزل په واټن د شپنو باندې شته چې هلته د خوراک، څښاک مواد او د شپې تيرولو امکانات پيدا کيږي.

که چيرې د شابيو په تنګي کښې د بريښنا بند جوړ شي او بيا له هغه ځايه تر نومړو جهيلونو پورې سړک وغزول شي نو بې له شکه په ښکلې او ننداريزه سيمه جوړه شي.

پنځه واړه جهيلونه رڼې تکې سپينې او خونده ورې اوبه لري د اوبو سرچينه يې چاته معلومه نه ده، د کال په هر موسم کښې له اوبو نه ډک وي. ژورتيا يې زياته ده، پلنوالى او اوږدوالى يې له بند امير څخه لږ څه کم دى، شاوخوا يې هوار ميدانونه لري.

د مرغې د قريې اوسيدونکي حاجي متاخان چې ګرځنده او هوښيار سړی دی وايي «دا ډنډونه ډېر پخواني دي او هيڅ يو يې هم کومه ځنډه ورانه کړی نه ده او نه يې کوم زيم وهلی دی سړی داسې فکر کوي. لکه اوبه چې په جام کښې پرتې وي».

له دې ډنډونو ځخه لېږ راښکته ډېر ښکلی او خوشبويه ګلان موجود دی فعلاً يوازی د اوړي په موسم کښې نوموړو ډنډونو ته تګ راتګ کيدای شی ځکه هوا ښه وي له اوړی نه مخکې او وروسته هوا سړه وي او هلته تلل راتلل او وخت تيرول له ستونزو ځخه ډک وي په هر صورت د دې جهيلونو او د هغوی شاوخوا محيط څېړل به د جغرافيې د پوهانو او جيولوجستانو لپاره په زړه پورې وي، ځکه تفريحي، اقتصادي او څېړنيز په زړه پورې اړخونه لري.

# پنځم څپرکی

# بریښنا

د افغانستان په سلو کښې (۹۵) بریښنا له اوبو څخه لاس ته راځي نو ځکه په هېواد کښې د مختلفو سیندونو د پاسه د بریښنا د تولید بندونه جوړ شوي دي، چې له هغو څخه د بریښنا په تولید کښې ګټه اخستله کېږي چې مشهور بندونه او د بریښنا د تولید فابریکې یې دادي.

## الف – د جبل السراج بریښنا کوټ:

د دې فابریکې کار د سالنګ د سیند له پاسه د انګلیسي متخصصینو له خوا په (۱۹۱۱) م کال پیل او په (۱۹۱٤) م کال کښې پای ته ورسید او فابریکه د ګټې اخستو لپاره چمتو شوه، څلور توربینه لري، د جبل السراج د بریښنا له مرکز څخه د ګلبهار د نساجی فابریکه د جبل السراج د سمنټو فابریکه او د جبل السراج د ښار ګوټي د روښانه کولو لپاره کار اخستل کېږي.

## ب – د وردګو د چک بریښنا کوټ:

د بریښنا پیداکولو نوموړې فابریکه د وردګو د سیند له پاسه د المانیانو په مرسته له (۱۹۳٦) م څخه تر (۱۹٤۱) م کال پورې د ګټې اخستو لپاره چمتو شوه، درې توربینه لري او ظرفیت یې (۳۰۰۰) کیلو واټو ته رسیږي.

## ج – د پلخمري بریښنا کوټ:

د کندوز د سیند له پاسه د المانیانو له خوا جوړ شوی دی پیداوری ورتیا یې په ساعت کښې (۳۰۰۰) کیلو واټه بریښنا ده په (۱۹٦۲) م کال کښې د

شورویانو له خوا د پلخمري د بریښنا دویمه او دریمه دستگاه د فعالیت لپاره چمتو شوه چې ورتیا یې په ساعت کښې (۹۰۰۰) کیلوواټه اټکل شوې ده. ددې دستگاه له بریښنا څخه د غوري د سیمینټو په فابریکه، د پلخمري په سیلو، د پلخمري په نساجي، او د پلخمري د ښار گوټي په روښانه کولو کښې گټه اخستل کیږي.

## د - سروبي بریښنا کوټ:

د سروبي د اوبو زیرمه کولو بند او د بریښنا فابریکه د المانی ماهرینو له خوا د کابل سیند له پاسه په (۱۹۵۱)م کښې کار بشپړ شو دا دستگاه دوه توربینه لري، چې پیداواري ورتیا یې په ساعت کښې (۲۲۰۰۰) کیلوواټو ته رسیږي، ددې پروژې له بریښنا څخه د کابل ښار په روښانولو، د گلبهار د نساجی په فابریکه او د کابل ښار په نورو فابریکو کښې گټه اخستله کیږي، د اوسنی بند په مرسته کیدای شي، چې د سروبي دریمه او څلورمه دستگاه جوړه شي.

## هـ - د نغلو بریښنا کوټ:

د نوموړې فابریکی کار د شوروی متخصصینو له خوا د کابل سیند له پاسه په (۱۹۶۰)م کال پیل او په (۱۹۶۷)م کال کښې د گټې اخستو لپاره چمتو شوه، دا دستگاه څلور توربینه لري، چې ټول ظرفیت یې په یوه ساعت کښې (۹۶) زره کیلو واټو بریښنا ته رسیږي، د نغلو د اوبو د زیرمی بند سربیره پر دې چې د نغلو د بریښنا د تولید دستگاه ته اوبه برابروي، د سروبي او درونټې د بندونو لپاره هم اوبه زیرمه کوي.

## و - د درونټې بریښنا کوټ:

د درونټې د بریښنا دستگاه د شورویانو پواسطه کابل سیند له پاسه جوړه شوې ده، ددې دستگاه د بریښنا ظرفیت په یوه ساعت کښې (۱۲) زره کیلو واټه دی چې د جلال آباد د ښار په روښانه کولو او د ننگرهار د کرنې د فارمونو په چارو کښې ترې گټه اخستل کیږي.

ز – د گرشک بریښنا کوټ:

دې دستگاه په (۱۹٤۸) م کال کښې په یوه ساعت کښې د (۲۸۰۰) کیلو واټ په ظرفیت په فعالیت پیل وکړ، په پلان کښې وه چې د کجکي بند چې د هلمند د سیند له پاسه جوړ شوی دی د بریښنا د تولید فابریکه فعاله کړي، چې ټوله وړتیا به یې ۱۲۰ زره کیلو واټو ته ورسیږي اوسنۍ فابریکه یې (۳۳) زره کیلوواټو ظرفیت لري چې د گرشک، لشکرگاه او کندهار د ښار په روښانه کولو او نورو صنعتي مرکزونو کښې ورڅخه گټه اخستل کیږي.

په افغانستان کښې د حرارتي بریښنا دستگاوې هم شته سربیره پر دې چې تر ټولو ستره دستگاه یې په مزار شریف کښې ده او د جوزجان په طبعي گاز چلیږي.

ددې دستگاه تولیدي ظرفیت په یوه ساعت کښې (۳٦) زره کیلو واټه دی، د بریښنا دغه ظرفیت د هیواد را تلونکی اړتیاوی نشي پوره کولای خو له نیکمرغه په افغانستان کښې د بریښنا د نویو شبکو د جوړیدو امکانات ډیر او غښتلي دي چې په سوله ایزو شرایطو کښې د ډیرې بریښنا د تولید لپاره ښې لارې چارې شته دي.

# شپږم څپرکی

# کرنه، بڼوالي او مالداري

په افغانستان کښې له ګاز څخه وروسته د کرنې، مالدارۍ او بڼوالۍ محصولاتو باندیني تجارت کښې دویم مقام درلود. که څه هم په افغانستان کښې د هلمند ناوې پروژه، د ننګرهار ناوې پروژه، د سروبې د بند پروژه، د پروان د اوبو لګولو پروژه په نوي او عصري سیستم رویکار شوې او پدې پروژو کښې میکانیزه کرنې دود شوی وه چې په زړه پورې پایلې ترې په لاس راغلي، خو په عمومي ډول په افغانستان کښې کرنه په ډیره ابتدایي بڼه دود لري هماغه ساده او پخواني وسایل پکې کارېږي، له اصلاح شویو تخمونو، کیمیاوي سرې، نباتي ناروغیو ضد درملو او ماشین آلاتو څخه ډیر لږ کار اخیستل کیږي. د اوبو د منظمو شبکو نشتوالی او د ترانسپورټ وروسته والی هم ددې سبب شوی چې له ځمکې څخه په زړه پورې حاصلات لاس ته رانشي.

په افغانستان کښې غنم، جوار، مې، اوربشې، وریجې، کوږخې، نخود، لوبیا، نسک، مشنګ، پمبه، چغندر، ګني، زغر، شړشم، کونځلې، کاپرګل، موم پلي، ارهر، غوښت، کدو، پالک، ګلپي، ګازرې، شفتلې، رشقه، باټینګړ، ټیپر، بینګړی (بامیا) شنې توراي، فاسولیا، سرې او سپینې مولۍ او نور کرل کیږي په افغانستان کښې د بیلا بیلو اقلیمونو له کبله ډول، ډول میوې کیږي، یو وخت د افغانستان د صادراتو (۲۵ - ۳۰) په سلو کښې میوې وی او بڼوالۍ ته پوره پاملرنه کیده. په افغانستان کښې په عمومي ډول انګور، آنار، مڼې،

ناک، بهی، توت، زرد الو، پسته، شفتالو، الوبالو، گیلاس، الوبخارا، غوزان، بادام، انځر، جلغوزی، لیمو، مالته، نارنج، ختکی او هندوانې مشهورې تازه او وچې میوې دي، چې جلغوزی او پسته له ځنګلونو، ختکی او هندوانې له پالیزونو او نورې میوې له باغونو څخه لاس ته راځي.

زموږ د هیواد په سلو کښې (۸۰) کسان په کرنه او مالدارۍ مشغول دي، نو ځکه ډول، ډول ځاروي دلته روزل کیږي، لکه میږې، وزې، غواوې، خره، (کچرې)، اسونه، قره قل پسونه، اوښان او غژګاو.

له جګړې نه مخکې کلونو کښې حیواني محصولاتو د هیواد په صادراتو کښې پوره او د پام وړ ونډه درلوده خو له یوې خوا یوویشت کلنې جګړې او له بلې خوا وروستنیو وچکالیو د افغانستان مالدارۍ ته سخت تاوان ورساوه.

د یادونې وړ ده سربیره پر دې چې یو مقدار حیواني محصولات لکه غوړي، وړۍ، وژغنی او پوستکي چې بهر ته صادر یدل او زموږ هیواد ته یې بهرنۍ پیسې ګټلې د هیواد په دننه کښې په صنعتي برخه کښې ترې کار اخستل کیده او زموږ د هیوادوالو اړتیاوې یې پوره کولې. د بیلګې په ډول له پوستکو څخه د آهو بوټ جوړولو په فابریکه کښې ټینګ او ښکلي بوټان جوړیدل، له وړیو او وژغنو څخه قالینې، ټغرې، شړۍ، لیمڅي او کیږدۍ جوړ یدلې. د افغانستان د کورک او برکې توکرانو خو ډیر مینه وال درلودل، د کندهار او پلځرخي د وړیو اوبدلو فابریکې له چا څخه پټې نه وې.

خو اوس دا هر څه پر تپه ولاړ دي، کروندې شاړې، حیوانات ځاروي پوپنا، ویالې ورانې دي، د فابریکو ماشینونه کباړ شول او کلي سپیره پراته دي. هو! دا هر څه له مونږ نه جګړې واخستل.

# اووم څپرکی

## د میملی تاریخی باغ

میمله د هغې سیمی نوم دی چې د ننګرهار ولایت د جلال آباد د ښار تقریباً د جنوب غرب خواته د کړې ولسوالی مربوط د سپین غره پر لمن پرته ښیرازه سیمه ده د میملې تاریخي باغ همدغلته دی.

د میملې تاریخي باغ مربع شکله په (۲۲۵۰۰) مربع متره ځمکه کښې جوړ شوی دی، په سیمه کښې پوره نوم لري د تاریخي، اقتصادی، زراعتي او تفریحي دلایلو له امله هم د توجه وړ دی.

د دغه باغ د جوړولو په هکله له عامو خلکو سره بیلا بیل فولکلوری او څه ناڅه تاریخی نظرونه شته دي.

ځینې خلک وایي چې دا ښکلی باغ ښاپیریو جوړ کړی او پخوانیو باغوانانو دا ښاپیرۍ لیدلي هم دي چې په هغوی کښې د بدرۍ جمالې ښاپیرۍ نوم ډیر مشهور دی.

خو تاریخی ورته نظر دادی چې دا باغ شاه جهان پاچا جوړ کړی دی چې د خپلې میملې نومې لور په نامه یې پر دی سیمه او شاوخوا ځمکې د میملی نوم ایښی دی، د میملې د باغ په هکله د خلکو فولکلوري نظر پخپل ځای ارزښت لري، خو په تاریخي او علمی بنسټ ولاړ نه بریښی ځکه په دغه سیمه کښې پخوا د تعلیم خاوندان نه و نو ځکه یې د باغ په باره کښې مستند او کره معلومات نه درلودل او یوازې یې په روایتی نظر یې اکتفاء کړې ده.

دا چې وایی دا باغ شاه جهان جوړ کړی دی څه نا څه سم ښکاري پدې هکله د

فارسي ژبې يو شعر چې خلکو ته ياد دی دادی:

*به ساختن باغ شاه جهان — نیم اش درون، نیم اش بیرون*

د پورتنی شعر يوازی همدا برخه خوله په خوله رانقل شوې او نورې برخې يې د خلکو له ياده وتلي دي، خو دا چې شاه جهان په هند کښې د واکمنۍ دوره تيره کړې ده او ډير عمراني کارونه يې هم کړی دي نو کيدای شي چې د ميملی باغ يې هم جوړ کړی وي. د ميملی باغ په (١٠٥٦) هـ، ق کال د شعبان په مياشت کښې جوړ شـوی دی. او رنگ زيب د شـاه جـهـان زوی چې کـوم وخت د ننگرهار د خوږيانو په آشپان، د سره رود په باغوانيو او د لغمان په چار باغ کښې باغونه جوړ کړل چې اوس نشته له دې باغونو څخه داراشکوه د شاه جهان مشر زوی خبر شو نو له پلار څخه يې هيله وکړه چې ده ته هم يو باغ جوړ کړي، شاه جهان ورته وويـل: چـې تـاته به يې د سـپين غره په لمن ميمله کښې جوړ کړم، د شاه جهان له دې وينا څخه ښکاری چې د باغ له جوړولو څخه دمخه د ميملې نوم او سيمه موجوده وه.

د فتح خان او کرمې په فولکلوری کوکيسو کښې هم د ميملی نوم څو ځايه راغلی دی چې ددې سيمې په لرغونتوب دلالت کوي.

په دې باغ کښې مربع ډوله پټي جوړ شوي دي، چې شاو خوا يې منظم سړکونه دي او چنارونه پرې ولاړ دي، په باغ کښې شمالاً او جنوباً يو سړک ويستل شوی، چې څو گاډي څنگ په څنگ پرې تلای شي او پر دواړو خواوو يې د چينارونو او سبرونې ولاړې دي.

ددغه باغ تاريخي ارزښت په دې کښې دی چې په افغانستان کښې بل داسې پخوانی باغ چې په همداسې منظمه نقشه جوړ شوی وي نشته، که چيرې کوم مشهور پخوانی باغ و، هغه اوس له منځه تللی، خو ددې باغ له پخوانيتوب سره، سره سرکونه، پارکونه او ونې پخپل حال پاتې دي، د کومو چينارونو ډډونه چې تخريب شوي، هغه د موظفو کسانو له خوا په پخو خښتو او سمنټو ډک شوي دي.

د امیر حبیب الله خان د امارت په وخت کښې د هغه په امر په نوموړی باغ کښې دوه عصري ودانۍ جوړې شوی، یوه د باغ په منځ کښې او بله په شمالي خوا کښې جوړه شوه، شمالي ودانۍ ته مخامخ یې د (۵ , ۱) مترو په پلنوالی شمالاً او جنوباً حُوبی جوړ شوی ځرنګه چې باغ په یوه مایله سطحی پروت دی، نو نوموړی ځوبي تقریباً دوه متره لوړوالی لري، د ځوبیو په منځ کښې کابو پنځه متره فاصله موجوده ده، د هغوی په منځ کښې یو ډنډ دی، چې نوموړي ډنډ ته تقریباً د پنځه مترو په ژور والي د یوې سرپټی پخې ویالی له لارې اوبه راغلي دي او د ډنډ په منځ کښې د فوارې بیخ ته برابرې شوي دي چې دا فواره د درې مترو په اندازه اوبه پورته کولی شی، امیر حبیب الله خان به چې کله دې باغ ته د تفریح او سیل لپاره راتـه نو د باغ په شمالي ودانۍ کښې به ورته ناست و او د ځوبیو په تاخچو کښې به یې شمعې بلولې او له پاسه به پرې اوبه راتویدلې.

د باغ شمالي ودانۍ ورانه شوې ده، خو هغه بله ودانۍ پخپل ځای پاتې ده. د میملې باغ ته د امیر امان الله خان په وخت کښې د تیلفون سوچبورډ راوړل شو، چې له هغې ځخه کابل، جلال آباد، سروبی، حصارک، ماماخیلو، خوږیانیو او پچیر اوګام ته مزي غزیدلي و.

ددې باغ په مربع شکلو پټیو کښې پخوا د آنارو باغونه وو کله چې د ننګرهار کانال او فارمونه جوړیدل، نو د فارمونو له ضرورت سره سم د انارو پر ځای د چینار، سبر، مورفان، ناجو ګلونو، نارنج، مالټی او نورو راز، راز میوه یي او بې میوو ونو بوزغلي پرې وکرل شول او د کانال د فارمونو اړتیا وړ ونې همدلته برابرې شوې، سربیره پر دې ددې باغ زیاتی ونی، بوټې هر کال په آزاد بازار کښې له دې باغ ځخه خرڅیږي او ګټه یې د ننګرهار زراعت ته ورکول کیږي.

سربیره پر دې د نوموړي باغ لوکاټ، منې، نرګس ګلان او نارنج هر کال په لکونو افغانیو په اجاره ورکول کیږي او لاس ته راغلي پیسې د ننګرهار د کرنې د ادارې پانګه ګڼل کیږي.

د میملې باغ ښایسته ګلان، ګڼ سیوري او ښکلي ونې لري، چې د سیل او

تفریح لپاره ښه ور دی، له جګړې نه په پخوا کلونو کښې نه یوازې کورني سیلانیان تله راتلل، بلکې د بهرنیو سیلانیانو توجه یې هم ځانته راګرځولې وه.

د توجه وړ خبره داده چې د دومره اوږدې جګړې په کلونو کښې څنګه دا باغ په نسبي توګه جوړ پاتې شوی دی.

د میملې خلک که څه هم د سواد له نعمت څخه بې برخې دي. خو پر تجارتي کارو بار باندې مشغول او ګرځنده خلک دي، نو د هیواد په دننه او بهر کښې یې ډیر ځایونه لیدلي او په ارزښت یې پوهیږي نو له همدې کبله دوی د میملی د باغ په تاریخی او اقتصادي ارزښت پوهیدل، نو په ګډه یې د باغ ساتلو ته ملا تړلی ده، قومي پریکړه یې کړې وه چې هېڅوک به د باغ له ونو سره غرض نه کوي. که چیرې به چا سرغړونه کوله، نو هغه ته به یې له قامي دود سره سمه جزا ورکوله، د سیمی وسلوالو کسانو هم د باغ خواته پاملرنه کوله او د باغ باغوانانو ته د باغ خدمت مخه ورکړی وه چې خپل کوپوني مواد او معاش دې د ننګرهار د کرنې له اداري څخه په لاس راوړي، د میملې خلکو نه یوازې د باغ د ساتلو په هکله بلکې د هغې د سمسورولو لپاره ډیر کار کړیدی آن چې د اړتیا په وخت کښې ورته په بیه اوبه اخستي دي، خو باغ یې تازه ساتلی دی. په (۱۳۷۳) هـ، ش کال د میملی باغ ته د معروف موسسه راغله د باغ ودانۍ یې او جړوبی یې ترمیم کړل، شیشې یې ورته ولګولې او په هره تاخچه کښې یې ګروپونه ولګول او د بریښنا مزیی ور تیر کړل، د نوموړي باغ له جوړپاتې کیدو څخه داسې جوتیږي که چیرې ولس وغواړي چې بـاغـونه او نورې ملي شتمنۍ وساتي حتماً ساتل کیږي.

خدای «ج» دې وکړی چې زمونږ نور هیوادوال د میملې د باغ سمسورتیا او جوړ ساتلو څخه پند واخلي.

# اتم څپرکی

# لويې لارې او هوايي کربنې

يو انګريزي متل دی (The culture goes by road) يعنی کلچر او پرمختګ له سړک سره ځی. په حقيقت کښې د يوه هيواد د پرمختګ لپاره مواصلاتي کرښې د اقتصادي ودې بنسټ ګڼل کيږي، په هيواد کښې د پخو او عصري سړکونو شتوالی د ژوند پر ټولو فعاليتونو او اړخونو باندې مثبت او ژور تاثير لري کله چې سړی له خپل هيواد څخه بهر په کوم پرمخ تللي هيواد کښې پر پخو او عصري سړکونو منظم ترانسپورت ويني، له واره پوهيږي چې دی حالت د هغه هيواد دخلکو پر اقتصادي، تعليمي، روغتيايي، تجارتي او ورزشي فعاليتونو څومره مثبت اثر اچولی دی.

په افغانستان کښې تر (١٩٣٠) م کال پورې به زياتو خلکو پلې مزلونه کول، يو لږ شمير کسانو به له څارويو څخه د سورلۍ کار اخيست او د مالونو وړل راوړل خو ټول د څارويو پر غاړه وو.

له دويمې نړيوالې جګړې وروسته د سړکونو جوړيدو ته پاملرنه وشوه او له کورنۍ جګړې نه مخکې په افغانستان کښې تقريباً (٣٨٠٠٠) کيلومتره د ګټې اخستو وړ سړکونه او (٢٥٠٠) کيلومتره داسې سړکونه موجود و چې د کال په ځينې موسمونو کښې به ور څخه ګټه اخستل کيده همداز په هيواد کې (٢٥٠٠) کيلومتره په اندازه پاخه سړکونه په دې دول جوړ شوي و.

## الف - د کابل تورخم لويه لار:

ددې سړک کار په (١٣٣٥) هـ. ش پيل او په (١٣٤٤) هـ. ش کال پای ته

ورسیـد ددې سړک اوږدوالی له کـابل څخـه تر تورخم پورې (۲۳۲) کیـلومـتره او پلنوالی یې (لس متره) دی، دا سړک کابل له پېښور او لاهور سره یوځای کوي ددې پاخه سړک زیاته برخه د کورنی جګړې په ترڅ کښې زیانمنه شوې ده او جوړوالی ته ضـرورت لري. دا سـړک یوازینی سـړک دی چې د هند نیـمی قـارې، آسیـایې هیوادونو، اروپا او امریکا ته د افغانستان د تجارتی مالونو د لیږدونې لار اواروی.

## ب - د شمال لویه لار:

ډیره موده د هیواد شمالی ولایتونه د شیبر د غابنې (کوتل) او ښکاري درې له لورې د افغـانسـتـان له پلازمینی (کـابل) سره نښتی و، چې دا لار د ژمي په موسم کښې ډیره سخته او ستونزمنه وه خو په (۱۹٦٤) م کال (۱۳٤۳) هـ.ش کال کښې د سالنګ د کوتل په جوړیدو سره د دوشي او جبل السراج ترمنځ سړک سره یو ځای شو. دې لارې د کابل او پلخمري تر منځ واټن (۲۰۰) کیلومتره را لنډ کړ، وروسته بیا له پلخمري څخه کندوز، شیرخان بندر، مزار شریف، شبرغان او له مزارشریف څخه حیرتانو ته پاخه سړکونه وغزیدل چې، د سالنګ د کوتل اوږدوالي (۲٦۷٦) متره دی او له بحر څخه د سالنګ د غابنی لوړوالی (۳۸۰۰) متره دی.

## ج - د هیواد لویدیځه لویه لار:

ددې لویې لارې کـار په (۱۹۵۷) م کـال پیـل شواو په (۱۹٦٦) م کـال پـای تـه ورسیـده. ددې پاخـه سـړک تول اوږدوالی (٤۸۳) کـیلومـتـره دی، همـدارنګه د کندهار او سپین بولدک ترمنځ د (۱۰۱) کیلومتر په اوږدوالي پوخ سړک جوړ شو، چې د هیواد لویدیځې برخې له چمن، کویټې او بیا کراچۍ سره ونښتې همدارنګه له کندهار هرات او له هرات څخه تورغونډۍ پورې پوخ سړک جوړ شو، چې اوږدوالی یې (٦۷٤) کیلومتره کیږي او په کانکریټي ډول جوړ شوی دی. د کندهار، هرات، او هرات تورغونډۍ د سړک تر جوړیدو وروسته د هرات، اسلام کلا د سړک جوړول ضروري وګڼل شو. کله چې دا سړک جوړ شونو هرات د اسلام کلا له لارې د ایران د مشهد له ښار سره ترانسپورتی پیوستون پیداکړ او همدا رنګه هرات د تورغونډۍ له لارې له ترکمنستان سره وتړل شو.

## د - د کابل - ګردیز لویه لار:

د ګردیز د سړک کار د (۱۲۲) کیلومترو په اوږدوالي په (۱۹٦۵) م کال پیل او

په (۱۹۷۱) م کال کښې پای ته ورسید. همدا راز د خوست د سړک کار د (۱۱۷) کیلومترو په اوږدوالی په (۱۹۶۶) م کال پیل او په (۱۹۷۷) م کال کښې بشپړ شو. په همدې ترخ کښې د هیواد په ختیځه خوا کښې د سرخکانو او مهترلام سړک د لغمان ولایت له مرکز پورې د (۱۸) کیلومترو په اوږدوالی بشپړ او پوخ شو. همداراز د جلال آباد او اسعد آباد ترمنځ سړک د (۹۰) کیلومترو په اوږدوالي د جوړیدو کار بشپړ خو د قیر اچولو کار یې پیل او بشپړ نه شو.

په خواشینۍ سره باید ووایو چې ددې سړکونو قیر د کورنۍ جگړې له کبله په زیاترو ځایونو کښې له منځه تللی او بیا قیر کول غواړي.

## هـ - هوايي کرښې:

په (۱۹۵۶) م کال د لومړي ځل لپاره په افغانستان کښې ملکي هوایی ریاست جوړ شو، ددې ریاست په جوړیدو سره د افغانستان دننه او بهر د تلو راتلو اسانتیاوې ډیرې شوې. په (۱۹۵۷) م کال کښې د اندیمار شرکت په سلو کښې (۴۹) ونډه د پان امریکن د شرکت له خوا واخستل شوه، او پاتې (۵۱) په سلو کښې ونډه له آریانا شرکت پورې اړه درلوده. د آریانا شرکت الوتکو په عمومي ډول په هیواد کښې دننه د مزار شریف، کندهار، او هرات ښارونو ته او په بهر کښې تاشکند، مسکو، امرتسر، نوی ډیلی، بیروت، فرانکفورت، انقرې، روم او لندن ته الوتنې درلودې، او د باختر هوایي شرکت په هیواد کښې دننه الوتنې کولې.

د کابل او کندهار هوايي میدانونو نړیوال ارزښت درلود او په مزارشریف او هرات کښې هم بوینگ الوتکې کښیناستلی شوې.

په (۱۹۸۷) م کال کښې د آریانا شرکت (۱۲) الوتکې درلودې چې د مسافرینو پر وړو، راوړو سربیره یې د مالونو وړل، راوړل هم کول.

د یادونې وړ ده چې د آریانا شرکت په نړیوال کچ اوستندرډ پیلوټان او الوتنی عمله درلودل، همدا راز د الوتکو زیاته برخه ترمیم به د هیواد په دننه کښې د کورنیو تکړه انجینرانو او تخنیکرانو له خوا کیده.

# نهم څپرکی

## په افغانستان کښې مشرولي او قامولي

د افغانستان جيوپولتيکي موقعيت د تاريخ په اوږدو کښې تل د دې وياړلي او لرغوني هيواد د ځان بلا شوی دی، په تيره بيا په نولسمه او شلمه پيړۍ کښې چې دا هيواد د دوه لويو امپراطوريو (روس او انګريز) په منځ کښې راګير و. او هرې يوې امپراطورۍ د خپلو ګټو په پام کښې نيولو لپاره پدې هيواد کښې هره بدمرغي راوستې ده.

برتانوي امپراطورۍ (د چا خبره چې په قلمرو کښې يې لمر نه ډوبيده) د برتانوي هند د ساتلو لپاره افغانستان د بلا سپر ګرځولی و او په افغانستان کښې يې داسې اداره غوښته چې د قدرت مزي يې د انګريزانو په لاس کښې وي.

د روس امپراطورۍ چې له دو و پيړيو راهسې ورو، ورو په دمه دمه د خپل واک د ساتنې لپاره د هند د تودو اوبو پر لور روانه وه، دا يې نه غوښتل چې په افغانسان کښې يو قوي، مدرن پخپلو پښو ولاړ هيواد چې د دې هدف خنډ شي مينځ ته راشي.

د روس امپراطورۍ د هند د لارې پر سر داسې يو خوار، بيوزلی او ناتوان هيواد غوښت چې د اړتيا په وخت کښې يې په اسانۍ له ستوني تير کړي او کومه ستونزه ورته پيښه نه کړي.

دوی د امير شيرعلي خان د زمانې په شان يو حکومت په افغانستان کښې غوښت چې له جهانه بې خبره او د دوی د دروغو په وعدو غوليدونکي وي، کله چې په (۱۸۷۸)م کال د برلين په کانفرنس کښې د لويو ځواکونو تر منځ د

علایقو او نفوذ سیمي وویشل شوې، د نړۍ ټول ویښ هیوادونه پرې خبر شول، مگر د افغانستان حکومت او ملت له دې نه خبر نه وو چې د دوی د سر سودا شوی ده او د حالاتو بې خبره د افغانستان پاچا غوښتل چې د روس د امپراتورۍ دربار ته ورشي او د انگریزانو د ظلمونو او نارواوو له لاسه خاورې پر سر باد کړي.

هر چا ته معلومه ده چې دواړو امپراطوریو ته چې کله موقع په لاس ورغلې ده، زموږ د گران هیواد له زخمي بدن څخه یې یوه ټوټه غوڅه کړې ده. او کله چې هر یوې امپراطورۍ زموږ هیواد ته د دوستۍ لاس را اوږد کړی دی، بې مطلبه نه و. د شاعر په قول چې وایي:

*راته ښکاری چاغوی مې قربانی ته*

*دا په ما باندې چې شوی دې زړه سوی دی*

تاریخ شاهد دی چې افغانان دین دوسته، وطن پالونکي او له سیاسي تعصباتو څخه پاک خلک دي. افغانانو هر هغه څوک چې په ښو صفاتو پیژندلی او د مشرولی صفات یې لکه (مسلماني، زړه ورتوب، سپیڅلتیا، له هیواد سره مینه او وفاداري) پکې لیدلې هغه یې د خپل مشر په توگه منلی دی که هغه طاهر فوشنجي و یا عمر بن لیث صفاري، محمود غزنوي و که بابر مغولي، میرویس هوتک، که شاه محمود، شاه اشرف یا احمدشاه ابدالي، دوی هغه مشر منلی او د قوم او نژاد اختلاف پسې نه دی گرځیدلی. ځکه زموږ توریالیو نیکونو تر هر څه د مخه د افغاني ټولنې دوه ستر ارزښتونه (اسلامیت او افغانیت) تر هر څه وړاندې گڼل، په هیواد کښې ټول اوسیدونکي قامونه افغانان او هیواد یې افغانستان و، ټول د یو لښکر زمریان او ټول د یو باغ گلان وو، یو د بل په درد دردمند او په خوشحالۍ خوشحاله و. غم او ښادې گټه او تاوان یې شریک و کوم ظلم او وحشت چې په ورستیو کلونو کښې د افغان له خوا په افغان تحمیل شو، د زاړه ښکیلاک د هغې مفکورې د مډرن شکل زیږنده ده چې ویل به یې بیل یې کړه، ایل (محکوم) یې کړه چې ددې ناولې مفکورې د تحقق زړی زموږ په هیواد کښې د ببرک کارمل په وخت کښې د قومونو او

میلیتونو په نامه د اداري منځ ته راتګ و. په دې کښې شک نشته، چې دا تخم (کا، جي، بي) له درمند څخه راوړل شوی و، خو کله چې زموږ په هیواد کښې د کورنۍ جګړې اور بل شو، نو بیا یې اوبخور ته ډیرو د غرض خاوندانو متې رابډ وهلې چې تر اوسه لا لګیا دی، خو ددې خبرې یادول ضروري او پر ځای دي چې (افغانان چې احسان نه هیروي زیان او تاوان هم نه هیروي) نوره خوښه د غرض د خاوندانو.

که موږ یوازې په شلمه پیړۍ کښې د افغانستان حکومتونه او دربارونه مطالعه کړو، وینو چې د دې هیواد د مختلفو قومونو څومره مشهورو اشخاصو په تیره بیا لایقو او فعالو کسانو په سترو مقامونو کښې د ندې سر ته رسولي دي، ددې اشخاصو په تقرر او ګومارنه کښې هیڅ ډول تبعیض ته موقع نه ده ورکړ شوې او انشاء الله له جګړې نه په خلاص واحد افغانستان کښې به بیا هم دا موقع چا ته په لاس ور نه شي، په دې کښې شک نشته، چې حق تلفي به شوې وي، خو هغه به هم له یو قوم یا قبیلې پورې منحصره پاتې نه وي بلکې ضرر به یې د هر قام او قبیلې خلکو څکلي وي چې ځانګړي عوامل به یې لرل او مثالونه یې په تاریخ کښې کم نه دي.

ځینې بهرني د غرض خاوندان او یا هم په هغو پورې تړلي ځینې په نامه افغانان ددې په ځای چې په هیواد کښې د جګړې د پای ته رسونې او امنیت د تامین او د ټولو افغانانو د منلو وړ د یو پیاوړي مرکزي حکومت غم وخوري او پدې هکله خپلې هلې ځلې منسجمې کړي، ټوله ورځ د تبعیض او نفاق په نینو شخوند وهي، غیرواقعي احصایې نشروي او د ځوان نسل په ذهن کښې د خپل هیواد د نفوسو او قومونو د شمیر او فیصدۍ په هکله سوالونه پیدا کوي، اصلاً خو ټولو ته معلومه ده چې په افغانستان کښې نن سبا سر شمیرنه ناممکنه ده په داسې حال کښې چې زیات افغانان د نړۍ په مختلفو هیوادونو کښې خواره او مهاجر دي خو دلته به د ګرانو لوستونکو حضور ته د هغې سر شمیرنې جدول وړاندې کړم چې د ثور له کودتا څخه مخکې د محمد داود خان په وخت کښې شوې وه.

## د افغانستان د نفوسو شمېر او قومي ترکيب

| گڼه | قومونه | نفوس | فيصدي |
|---|---|---|---|
| ۱ - | افغان (پښتانه) | ۸،۰۰۰،۰۰۰ | ۵۲،۹ |
| ۲ - | تاجک | ۳،۰۰۰،۰۰۰ | ۱۹،۸ |
| ۳ - | هزاره | ۱۳۰۰،۰۰۰ | ۸،٦ |
| ٤ - | چارايماق | ٤۵۰،۰۰۰ | ۳،۰ |
| ۵ - | بلوچ | ۱۳۰،۰۰۰ | ۰،۹ |
| ٦ - | نورستاني | ۱۲۰،۰۰۰ | ۰،۸ |
| ۷ - | پاميري | ۱۰۰،۰۰۰ | ۰،۷ |
| ۸ - | پارسي | ٤۰،۰۰۰ | ۰،۳ |
| ۹ - | کُرد | ۱۰،۰۰۰ | ۰،۱ |
| ۱۰ - | اورمړي | ۵۰۰۰ | ٪ |
| ۱۱ - | پراچه | ۵۰۰۰ | ٪ |
| ۱۲ - | ازبک | ۱۳۰۰،۰۰۰ | ۸،٦ |
| ۱۳ - | ترکمن | ۳۰۰،۰۰۰ | ۲،۰ |
| ۱٤ - | افشار او قزلباش | ۳۰۰،۰۰۰ | ۲،۰ |
| ۱۵ - | قرغز | ۱۰،۰۰۰ | ۰،۱ |
| ۱٦ - | قزاقان | ۵،۰۰۰ | ٪ |
| ۱۷ - | پشه يان | ۱۰۰،۰۰۰ | ۰،۷ |
| ۱۸ - | پنجابيان، هندوان او سکهان | ۲۵،۰۰۰ | ۰،۲ |
| ۱۹ - | تيرايي | ۲۰،۰۰۰ | ۰،۱ |
| ۲۰ - | بنګړيوال | ۲۰،۰۰۰ | ۰،۱ |
| ۲۱ - | جټ | ۱۰،۰۰۰ | ۰،۱ |
| ۲۲ - | کوهستاني (کوشتانی) | ۵،۰۰۰ | ٪ |
| ۲۳ - | برگون | ٤۰۰۰ | ۰،۳ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۲٤ - | عرب | ۳۰،۰۰۰ | ۰،۲ |
| ۲۵ - | مغل | ۲۰،۰۰۰ | ۰،۱ |
| ۲٦ - | گوجر، یهود او ایغور | ۳٤۰۰۰ | ۰،۲ |
| ۲۷ - | ټول | ۱۵۱۰۸۰۰۰ | ۱۰۰٪ |

یادونه:

د نړۍ د نفوسو له کتاب څخه چې د (اس، ای، بروک) تالیف او د مسکو د علوموا کادمۍ په (۱۹۸۱) م کال چاپ کړی دی له (۳۷۷) مخ څخه د پوهاند عبدالشکور رشاد ژباړه.

# لسم څپرکی

# د افغانستان ملکي اداري ویش

په اماني دوره کښې افغانستان (۹) اداري واحدونه درلودل چې پنځه یې ولایتونه او څلور یې اعلی حکومتونه و.

الف – ولایتونه:

(۱) کابل (۲) کندهار (۳) هرات (٤) ترکستان (٥) قطغن او بدخشان.

ب – اعلی حکومتونه (۱) مشرقی (۲) جنوبی (۳) میمنه (٤) فراه.

خو له اماني دورې څخه په راوروسته کلونو کښې بیا د هیواد تر دریم اساسي قانون په (۱۳٤۳) هـ، ش پورې د افغانستان اداري ویش د نایب الحکومگی، اعلی حکومتونو او یا لویو ولسوالیو په شکل پاتې شوی دی یعنی په دې موده کښې (کابل، کندهار، هرات، مزارشریف، قطغن، ننگرهار، پکتیا) نایب الحکومگی او (غزني، پروان، فراه، میمنه، بدخشان، شبرغان او گرشک) اعلی حکومتونه او (خوست، شینواری او کونړ) لویې ولسوالۍ وې، خو د وخت په تیریدو او د خلکو د غوښتنو له مخې دې اداري ویش د ولس د ستونزو د حل کولو ځواب نشو ورکولی نو په (۱۹٦٤) م کال د خلکود ستونزو د حل لپاره افغانستان پر (۲۹) ولایتونو وویشل شو، د وخت او محل له غوښتنو سره سم هر ولایت پر لویو ولسوالیو، ولسوالیو او علاقه داریو وویشل شو.

که څه هم د تیرو (شل – دوه ویشت) کلونو په دوران کښې په دې ملکي ویش کښې چارواکو څه بدلون راوست، خو څرنگه چې دې تغیراتو اکثراً

احساساتی سرچینه درلوده او د کوم عیني او علمي اړتیا پر بنا منځ ته نه و راغلي، نو چندان ارزښت یې پیدا نکړ او تقریباً پخوانی اداري تشکیل پر خپل حال پاتې شو. راځئ چې له دې ولایتونو سره لنډه پیژنده گلوي پیدا کړو.

| گڼه | ولایت | مرکز | ساحه په کیلو متر مربع |
|---|---|---|---|
| ۱ - | هرات | هرات | ٦٣١٠٣ |
| ۲ - | هلمند | لشکرگاه | ٦١٨٢٩ |
| ۳ - | فراه | فراه | ٤٧٧٨٨ |
| ٤ - | کندهار | کندهار | ٤٧٦٧٦ |
| ٥ - | بدخشان | فیض آباد | ٤٧٤٠٣ |
| ٦ - | نیمروز | زرنج | ٤١٣٥٧ |
| ۷ - | ارزگان | تیرین کوټ | ۲۹۲۹٥ |
| ۸ - | غور | چغچران | ۲۸٦٦۹ |
| ۹ - | جوزجان | شبرغان | ۲٦٦۸٦ |
| ۱۰ - | غزنی | غزنی | ۲۳۳۷۸ |
| ۱۱ - | فاریاب | میمنه | ۲۱۱٤٦ |
| ۱۲ - | بادغیس | قلعهء نو | ۲۰۰۷۸ |
| ۱۳ - | پکتیکا | ښرنه | ۱۹۳۳٦ |
| ۱٤ - | بامیان | بامیان | ۱۷٤۱٤ |
| ۱٥ - | زابل | کلات | ۱۷۲۹۳ |
| ۱٦ - | بغلان | بغلان | ۱۷۲۰۹ |
| ۱۷ - | سمنگان | ایبک | ۱٥٤٦٥ |
| ۱۸ - | بلخ | مزارشریف | ۱۲٥۹۳ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۹ - | تخار | تالقان | ۱۲۳۷٦ |
| ۲۰ - | کونړ | اسعدآباد | ۱۰٤۷۹ |
| ۲۱ - | پکتیا | گردیز | ۹۵۸۱ |
| ۲۲ - | وردگ | میدان ښار | ۹۳۹۹ |
| ۲۳ - | پروان | چاریکار | ۹۰۲۳ |
| ۲٤ - | کندوز | کندوز | ۷۸۲۸ |
| ۲۵ - | ننگرهار | جلال آباد | ۷٦۱٦ |
| ۲٦ - | لغمان | مهترلام | ۷۲۱۰ |
| ۲۷ - | لوگر | برکي برک | ٤٦۵۲ |
| ۲۸ - | کابل | کابل | ٤۵۸٤ |
| ۲۹ - | کاپیسا | محمود راقی | ۱۸۷۱ |

# یوولسم څپرکی

## اساسي قوانین او د دولتي قواوو تفکیک

اساسي قانون له هغه قانون څخه عبارت دی چې د یوې ټولنې د حکومت ډول، د اتباعو حقوق، آزادي او وجایب، همدارازدولتي تشکیلات، د دولتي ارګانونو صلاحیتونه او وظایف پکې تنظیم شوي او تعین شوي وي او د دولت کورنۍ او بهرنۍ سیاست ټاکي، یا هغه اصول دي چې د هیواد د سیاسي نهادونو او د فرمان ورکوونکو او فرمان وړونکو ترمنځ د واک په اړه موثر دي.

که څه هم اساسي قوانین په نننۍ مفهوم د (۱۸) مې ع پیړۍ زیږنده ګڼل کیږي خو د پخوانیو مشهورو تمدونونو په منځ کښې د لرغوني یونان تمدن د ومره پراخ او هراړخیز وچې د ژوند په زیاترو برخو خپور او تقریباً په هره ساحه کښې یې خپله ونډه جوته کړیده.

یونانِ د خپلو خاصو شرایطو له مخې له یو لړ وړو دولتونو، ښارونو او بلدیو څخه جوړ شوی و، چې هر یو یې ځانته بیل دولت او ځانګړي اساسي قانون درلود، چې ځینی یې اشرافي او ځیني یې دیموکرات وو، تقریباً دوه زره او دری سوه کاله پخوا ارسطو د یونان لوی فیلسوف په هغه وخت کښې (۱۵۸) اساسي قانونه په یونان کښې شمیرلی دي، د دیموکرات دولت په ښارونو کښې خلک په عمومي میدانونو کښې راغونډیدل او د پچو (قرع) پواسطه یې خپل واکمن یا چارواکی مامورین ودرول او هغه یې چې د اهلیت او لیاقت خاوندان نه بلل لری کول په دې توګه هر وګړی داسې فکر کاوه چې دی د بل چا تر حکم لاندې نه دی، بلکې دی پخپله پر خپل ځان حکومت کوي او دی د خپلې خوښې د حکومت خاوند دی.

ارسطو پخپل سیاست، نومي کتاب کښې د ښو حکومتونو ځانګړنه (توپیر یز) د دولتي قواوو تفکیک ښوولی دی، دی وایی چې ټول دولتی قدرتونه په یوه لاس کښې وي هغه ناوړه او بد حکومت دی، دی زیاتوي چې په یوه ښه حکومت کښې باید دولتي قدرت په دری قواو وویشل شي.

۱ - د قانون جوړولو قوه چې وظیفه یې د قوانینو جوړول وي.

۲ - اجرائیه قوه چې دنده یې اجرايوي کارونه وي.

۳ - قضایه قوه چې وظیفه یې د قانون له مخې قضاوت وي.

د نړۍ لومړنی اساسی قانون د انګلستان د اولسمې پیړۍ تعاملي اساسی قانون دی او بیا د امریکا د (۱۷۸۷) م اساسی قانون ته نوبت رسیږي، د امریکا څلورم جمهور رئیس جیمز میدیسن د اساسی قانون پلار ګڼل کیږي، د امریکا ذکر شوی اساسي قانون (۱۷۸۷) م کال په اوړي کښې د ملت د نماینده ګانو له خوا د فلادلفیا په ایالت کښې تصویب شو، چې په هغې کښې د فدرال حکومت شکل او صلاحیتونه ټاکل شوي او د وګړو آزادۍ او بنیادي یا اساسي حقوق پکښې تضمین شوي دي.

د فرانسې د (۱۷۸۹) م کال اساسي قانون په دریم مقام کښې ودریږي. زموږ په ګران هیواد افغانستان کښې په (۱۹۲۱) م کال د اساسي تشکیلاتو نظام نامه مینځ ته راغله، چې دولتي ماشین یې د (اجرائیه، مقننه او قضائیه) قواوو په دری څرخه سور کړ خو دې تشکیل او ترکیب خپل ځانګړی خاصیت او خصوصیت درلود، چې د دولتی قواوو درې ګونی تفکیک یې پوره نه شو تمثیل کولای او بیا په (۱۹۲۳) م کال د افغانستان د عالیه دولت اساسي نظام نامه او وروسته په (۱۹۳۱) م کال کښې د دولت اساسي اصولنامه جوړه شوه، که څه هم د دولتی قواوو تفکیک د افغانستان په دریم اساسی قانون (اساسي اصولنامه) کښې هم په نظر کښې نیول شوی و خو د زمانی او مکانی شرایطو له مخې کماحقه پرې ور او مناسب عمل نه کیده. په دې معنی چې اساسي قانون (اساسي اصولنامه) او نور قوانین تر هغه حده معتبر ګڼل کیده، چې احکام به

يې د صدراعظم د هدفونو خنډ نه گرځيدل او دا چې صدراعظمان به د پاچاهي کورنۍ غړي و نو د اجرائيه قواوو مشر په صفت پر نورو قواوو برلاسي درلوده.

۲ - دا چې د (۱۳۰۹) هـ، ش اساسي اصولنامه په يوه بله زمانه کښې تر خاصو زماني شرايطو لاندې جوړه شوې وه او د دريم اساسي قانون په وخت کښې زماني غوښتنې بلې ډول وې طبعاً دريم دا به تر هغه دويم اساسي قانون بهتر او مکمل و، او د بلې خوا په دې وخت کښې صدارت له سلطنت څخه جلا شوی و، نو د اجرائيه قواوو مشر صلاحيت د خپلو حدودو تابع و.

همدارنگه د لويې جرگې د تشکيل او صلاحيت په هکله نومړې اصولنامه گونگه پاتې شوې، حال دا چې په عمل کښې به د هيواد لويې خبرې لويې جرگې فيصله کولې د. بيلگې په توگه (۱۳۰۹) هـ، ش کال د سنبلې په (۱۸) مه لويه جرگه راوبلل شوه او اساسي قانون د اساسي اصولنامې په نامه لويې جرگې ته وړاندې شو، اود شکل له پلوه پر اساسي قانون ولاړ يو نظام منځ ته راغی يا دا چې د ملي شورې د انتخاباتو لايحه چې (۷) فصله او (۲۹) مادې يې لرلې د (۱۳۰۹) هـ، ش کال لويې جرگې ته چې (۱۰۳) تنه غړي يې درلودل وړاندې شوه، وروسته له تصويب او د پاچا له منظورې د همدې کال د سنبلې په (۲۸) مه نافذه شوه، د همدې لايحې له مخې د هيواد لومړنۍ ملي شورې په (۱۳۱۰) هـ،ش د سرطان په (۱٤) مه د سلامخانې په ماڼۍ کښې افتتاح شوه، په هر صورت د گران هيواد دولتي ماشين د همدې اصولنامې په حکم تر (۱۳٤۳)هـ، ش کال پورې چليده او بيا (۳٤) کاله وروسته د زماني له غوښتنو سره سم په (۱۳٤۳) هـ، ش کال د ميزان په نهمه د افغانستان دريم اساسي قانون د لويې جرگې تر تصويب وروسته منځ ته راغی دا اساسي قانون چې يو معاصر اساسي قاقون و، طرح يې د دغو اشخاصو له خوا تياره شوې وه:

۱ - د کميتې رئيس د وخت عدليه وزير ښاغلی سيد شمس الدين «مجروح»

۲ - د کميتې غړی د وخت د اطلاعاتو او کلتور وزير ښاغلی سيد قاسم «رښتيا»

۳ - د کمیټې غړی د وخت د معادن او صنایع د وزارت د پلان رئیس ښاغلی میرمحمد صدیق « فرهنگ »

٤ - د کمیټې غړی د وخت د پوهنې وزارت مشاور ښاغلی دوکتور میر نجم الدین « انصاري »

٥ - د کمیټې غړی د وخت د پوهنې د وزارت د ثانوی تدریساتو رئیس ښاغلی دوکتور عبدالصمد « حامد »

٦ - د کمیټې غړی د وخت د عدلیه وزارت د تقنین د چارو رئیس ښاغلی محمد موسی « شفیق »

۷ - د کمیټې غړی د وخت د حقوقو او سیاسي علومو د پوهنځي استاد ښاغلی حمید الله.

مخکې له دې چې دا مسوده لویې جرګې ته وړاندې شي د مشورتي کمیسون نظر ته وړاندې شوه، چې د وطن دغه نامتو څېرې د مشورتي کمیسون غړي وو.

۱ - ښاغلی عبدالهادي « داوی »

۲ - ښاغلی خلیل الله « خلیلي »

۳ - ښاغلی عبدالمجید « زابلی »

٤ - ښاغلی محمد قدیر « تره کی »

٥ - ښاغلی نور احمد « اعتمادي »

٦ - ښاغلی دکتور عبدالظاهر

۷ - ښاغلی مولوي غلام نبی « کاموی »

۸ - ښاغلی محمدشاه « ارشاد »

۹ - ښاغلي عبدالرّب

۱۰ - ښاغلی امیر الدین « شنسب »

۱۱ - ښاغلی پوهاند محمد اصغر

۱۲ - محترمه کبرا « نورزایی »

۱۳ -ښاغلی محمد ابراهیم «عفیفي»
۱٤ -ښاغلی صلاح الدین «سلجوقي»
۱۵ - ښاغلی میر غلام محمد «غبار»
۱٦ - ښاغلی محمد آصف «سهیل»
۱۷ -ښاغلی محمد کریم «نزیهي»
۱۸ - ښاغلی محمد هاشم «مجددی»
۱۹ - محترمه میرمن معصومه «وردګ»
۲۰ - ښاغلی پوهاند صدیق الله «رښتین»
۲۱ - ښاغلی دوکتور خلیل احمد «ابوي»
۲۲ -ښاغلی احراري
۲۳ - ښاغلی محمد ظاهر «ځدران»
۲٤ - ښاغلی پوهاند غلام سرور «رحیمي»
۲۵ - ښاغلی دوکتور عبدلواحد «سرابي»
۲٦ - ښاغلی لعل محمد «کاکړ»
۲۷ - ښاغلی ابوالخیر «خیري»
۲۸ - ښاغلی احمد علي «کهزاد»

په هر صورت د اساسي قانون پر مسودې باندې د غور او رایې اخستلو لپاره (۱۳٤۳) هـ، ش کال د سنبلې په (۱۸) مه د ورځې په لس بجو د سلام خانی په مانۍ کښې د قرآن عظیم الشان د څو مبارکو آیاتونو په تلاوت او د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه په پرانستونکي وینا د لویې جرګې کار پیل شو او د همدې میاشتې تر (۲۸) تاریخ پورې روان و

د اساسي قانون مسوده د لویې جرګې د تصویب له مخې د ګلخانې په مانۍ کښې د پاچا له خوا توشیح او نافذه شوه او پدې توګه د (۱۳۰۹) هـ،ش کال اساسي اصولنامه له ټولو ضمایمو سره لغوه اعلان شوه.

دې اساسي قانون په لاندې ډول یوولس فصلونه او (۱۲۸) مادې درلودې

۱ - لومړی فصل دولت (۱ - ٥) مادې پورې
۲ - دوهم فصل - پاچا (٦ - ٢٤) مادې پورې
۳ - دریم فصل - د خلکو اساسي حقونه او وظیفې (٢٥ - ٤٠) مادې پورې
٤ - څلورم فصل - شوری (٤٠ - ٧٧) مادې پورې
٥ - پنځم فصل - لویه جرگه (٧٨ - ٨٤) مادې پورې
٦ - شپږم فصل - حکومت (٨٥ - ٩٦) مادې پورې
٧ - اوم فصل - قضاء (٩٧ - ١٠٧) مادې پورې
٨ - اتم فصل - اداره (١٠٨ - ١١٢) مادې پورې
٩ - نهم فصل - د اضطرار حالت (١١٣ - ١١٩) مادې پورې
١٠ - لسم فصل - تعدیل (١٢٠ - ١٢٢) مادې پورې
١١ - یوولسم فصل - انتقالی حکومت (١٢٣ - ١٢٨) مادې پورې

د (١٣٤٣) هـ، ش کال اساسي قانون پخپل څلورم، شپږم او اووم فصل کښې د دولت د درې گونو قواو تفکیک د هغوی له تشکیل او صلاحیتونو سره په معاصر ډول او د وخت د غوښتنو ته په پاملرنه تعین او تثبیت کړ. د اعلیحضرت محمدظاهر شاه د وروستیو کلونو د سلطنت دوره وه چې یو معاصر اساسي قانون پکې جوړ شو، حکومت او سلطنت پکې بیل شول او له سیاسي نظره د جهان د ډیرو پرمختللو هیوادونو په څیر د دولت د قواوو تفکیک مینځ ته راغی او د دغو قواوو تر منځه گډې هڅې سره منسجمې شوې.

## د دولت درې گونې قواء:

### الف/ مقننه قوه:

دا قوه د افغانستان په دریم اساسي قانون کښې د شورئ په نامه یاده شوی ده په هر صورت د افغانستان دریم اساسي قانون د (٤١ - ٧٧) مادو پورې د شورئ د جوړښت، صلاحیت، وظیفو او نورو اړونده چارو په هکله پوره تفصیل

وړاندې کړې دی، شوری' د افغانستان د خلکو د ارادې څرګندویه ده او د ټول ملت نماینده ګي کوي.

د افغانستان خلک د شوری' له لارې د هیواد په سیاسي ژوند کښې برخه اخلي خلک شوری' ته هغه وکیلان انتخابوي چې د هغوی په پوهه او صداقت باور ولري. اجرائیه قوه (حکومت) د شوری' تر نظر لاندې اجراأت کوي او شوری' هغه نه پریږدي، چې د خلکو د ښیګڼی له لارې واوړي، نو همدا وجه ده چې د افغانستان خلک د شوری' له لارې د هیواد په سیاسي ژوند کښې برخه اخلي.

د ولسی جرګې غړی د آزادو، عامو، پټو، او مستقیمو انتخاباتو له لاری د څلورو کلونو یعنی یوې تقنینی دوری لپاره د قانون له احکامو سره سم انتخابیدل، خو د مشرانو جرګې د غړیو ټاکل د ځانګړی سلوک تابع و لکه په لاندې ډول:

**الف** – د مجلس دریمه برخه غړي د پوهو او تجربه کارو کسانو له منځه د پاچا له خوا د پنځو کالو لپاره ټاکل کیدل.

ب – پاتې غړي په رایو غوره کیدل.

۱ – د هر ولایت جرګې د خپلو غړیو له منځه یو تن د دریو کلونو لپاره د مشرانو جرګې د غړیتوب لپاره غوره کاوه.

۲ – د هر ولایت اوسیدونکو د آزادو، عامو، پټو او مستقیمو انتخاباتو له لارې یو کس د څلورو کالو لپاره د مشرانو جرګې غړیتوب لپاره غوره کاوه.

د ذکر شوي اساسي قانون (٤٨) مه ماده حکم کوي، چې (هیڅوک په یوه وخت کښې د دواړو جرګو غړی کیدای نشي.)

د افغانستان د دریم اساسي قانون په (٦٤) مه ماده کښې د پارلمان (شوری) دندې داسې ښودل شوي: شوری' د افغانستان د حیاتی چارو د تنظیم لپاره د دې اساسي قانون له حکمونو سره سم قوانین جوړوي.

هیڅ قانون نه شي کولای چې د اسلام د سپیڅلي دین د اساساتو او نورو هغو ارزښتونو متناقض وي، چې په دې اساسي قانون کښې راغلي دي. د بین المللی

معاهدو تصدېقول، خارج ته د افغانستان د اردو د ټولګیو لیږل، د اقتصادي اهمیت لرونکو امتیازاتو ورکول، انحصار، د پیسو د نشر اجازه او د پور اخستل د شورئ په صلاحیتونو کښې شامل دي، همداراز د مالي وزارت د ترتیب شوي او پشنهاد شوي مملکتي بودجې تدقیق او تصویب د ملي شورئ په وظایفو کښې شامل دي.

د نویو اصولنامو جوړول، په موجوده قوانینو کښې بدلون او تغییر راوستل د هغوی فسخ او لیرې کول د شورئ په خوښه کیږي. د قراردادونو او تړونونو کول، د امتیازونو (انحصار) ورکول، له تجارتي، صناعتي، فلاحي او داسې نور داخلي وي یا خارجي د ملي شورئ په تصویب رسیږي.

د اوسپنې (پټلۍ) او د سړک غزول د دولت په پیسو یا د داخلي یا بهرنیو شرکتونو او کمپنیو په مصرف ټول د ملي شورئ په تصویب پورې تړلي دي. د افغانستان دریم اساسي قانون شورئ ته دا حق ورکړی چې د اړتیا په وخت کښې د حکومت یا هم د حکومت له کوم غړي څخه استیضاح وکړي.

د دې اساسي قانون په مقصد قانون هغې مصوبې ته وایي چې دواړو جرګو منلې او پاچا ښکللې وي. په کومه برخه کښې چې داسې مصوبه نه وي هلته د اسلامي شریعت د حنفي فقې حکمونه قانون بلل کیږي.

نړیوال تړونونه چې شوري یې تصویب او پاچا یې لاسلیک کړی هم د قانون حکم پیدا کوي، البته د تقنیني فرمانونو په هکله ځانګړی چلن اټکل شوي دی.

## ب – اجرائیه قوه (حکومت):

(حکومت) اجرائیه قوې مشر ته صدراعظم ویل کیږي او د اجرائیه قوې غړي وزیران باله شي زموږ په هیواد کښې د حکومت مجموعې هیت ته د وزیرانو شورئ یا د کابینې نوم هم اخستل کیږي په حکومت پورې مربوط ټول مسایل او احکام نوموړي اساسي قانون په شپږم فصل کښې د (۸۵ – ۹۶) مادو کښې درج او توضیح شوي دي، د دغه قانون په (۹۸) مه ماده کښې حکم شوي دی: حکومت د هغه چا لخوا جوړیږي چې د پاچا له پلوه د صدراعظم په توګه

موظف شوي وي، د حکومت غړي او تګلاره د صدراعظم له خوا ولسي جرګې ته وړاندې کیږي او جرګه له مباحثې وروسته پر حکومت د باور په باب پریکړه کوي که چیرې حکومت ته د باور رایه ورکړل شوه، د حکومت د مشر او غړو د ټاکلو په باب پاچاهي فرمان راوځي وروسته صدراعظم د خپل حکومت تګلاره د مشرانو جرګې ته وړاندې کوي.

د حکومت د غړیو د وصف په باره کښې په همدې فصل کښې داسې یو مطلب راغلی دی: (هر هغه څوک چې د دې اساسي قانون د حکمونو له مخې د ولسي جرګې د غړیتوب د انتخاب اهلیت ولري، هغه د حکومت د مشر یا غړي په توګه ټاکل کیدای شي. د شورئ هر غړی چې د حکومت د مشر یا غړي په توګه وټاکل شي، په شورئ کښې خپله چوکۍ له لاسه ورکوي) همدا راز د پورتني اساسي قانون په (۹٤) مه ماده کښې د حکومت یا اجرائیه قوه د ندې په دې ډول ټاکل شوې دي:

د دې اساسي قانون او نورو قوانینو د حکمونو عملي کول، د محکمو د قطعي فیصلو تعمیل، د عمومي نظم او امن ساتلو لپاره د ضروري تدابیرو نیول، د دولت د مالي وضعې سمون او د عامه شتمنیو ساتل، د خلکو ټولنیز ثقافتي او اقتصادي حالت ښه کول، د خپلواکۍ ساتنه، د خاورې د تمامیت دفاع او په بین المللي ټولنه کښې د افغانستان د ښیګڼو او حیثیت ساتنه د حکومت وظیفه ده.

حکومت د خپلو وظیفو د سمون لپاره د قانون پر بنسټ مقررات جوړوي، دا مقررات باید د هیڅ قانون له عبارت او روح سره ټکر ونلري.

په پورته کرښو کښې د عامه نظم او امن یادونه وشوه او د هغې تامین او ساتنه د حکومت یا اجرائیه قوې وظیفه وګڼل شوه بهتره به وي چې دا دواړه کلمې تعریف او توضیح شي، ځکه ډیر قلم وال هم کله، کله په خپلو لیکنو کښې د عامه امن پر ځای د عامه امنیت اصطلاح کاروي، په داسې حال کښې چې عامه امن او عامه امنیت دوه ځانګړي مطلبونه دي او یو له بل سره تغیر لري کله چې د

عامه امنیت له کلمې سره مخامخیږو، سترګو ته مو هغه جرمي اعمال درېږي چې په یو نه یو ډول د هغوی د ارتکاب په نتیجه کښې د دولتي ارګانونو حیثیت جریحه دار کیږي لکه رشوت، قاچاق، د مخدره موادو استعمال، د جعلي نوټونو استعمال او یا مو د محاکمو هغو ځانګو ته توجه راګرځي چې د همدا ډول جرمونو څیړنه کوي او د عامه امنیت د دیوانونو په نامه یادیږي، د محکمو دا ځانګې په ولسوالیو کښې اصلاً نه وی او د ولایاتو په مرکزونو کښې په مرافعه محکمو کښې د عامه امنیت دیوان د ابتدایي محکمې په ډول موجود وي، چې د هغې لپاره دویمه لوړه محکمه استیناف او دریمه محکمه د تمیز محکمه ده، چې یوه ځانګړی سیمه او ساحه را اخلی خو د عامه امن او نظم کلمې ډېر څه پراخ او ټولنیز مفهوم وړاندې کوي.

## عامه امن:

هغه حالت دی چې په هغه کښې د دولت حقوقی نظام، آزادي، انساني کرامت او د خلکو مالي او جسماني تمامیت خوندي شوي وي. عامه امن پر ټولنه باندې له حاکمو قوانینو څخه د سرغړونې په نتیجه کښې ګډوډیږی.

## عامه نظم:

هغه حالت دی چې په هغې کښې ټولنیزه سوکالي پر ټولنه باندې د حاکمو حقوقي قواعدو پواسطه تامین شوې وي او کله چې د ټولنې د خلکو مذهبي، ذهني، اخلاقي او ټولنیز احساسات په نظر کښې ونه نیول شي، اخلالیږي، نو که زموږ مطلب د امنیت ټینګول وي، نو بیا به د عامه امنیت په ځای د (عامه امن) کلمه وکاروو، د بیلګې په توګه ویلای شو، د هېواد دننه د عامه امن ټینګول د کورنیو چارو د وزارت دنده ده.

## ج - قضایه قوه:

کابو (۲۰۰۰) کاله پخوا په یونان کښې محاکم موجود وو، خو دا چې څه ډول محاکم و او د ژوند کومو ساحو ته یې پاملرنه کوله، دا خبره په هغه زمان

او مکان پورې مربوط ده، خو دا چې په انساني ټولنه کښې د هابیل او قابیل له زمانې څخه شخړه او تاو تریخوالی شته، نو ضرور به څه داسې خلک او رسم او رواج او یا قواعد موجود وو چې دا کړکیچونه اوار کړي.

د اسلام مبارک دین چې د عدل او انصاف دین دی او هیڅ ډول تبعیض نه مني او د فضیلت معیار تقوی ګڼي، نو د قضاوت تر ټولو ښې نمونې یې نړۍ ته وړاندې کړیدي، لوی خدای «ج» پخپل عظیم کلام کښې فرمایي: (کله چې د خلکو په منځ کښې حکم کوئ، نو په عدل او انصاف سره حکم وکړئ)

وایي چې د عربو د قریشو د قبیلې کومې ښځې غلا کړې وه، د قوم څه مشران د جناب حضرت محمد مصطفیٰ «ص» مبارک حضور ته ورغلل او غوښتنه یې وکړه چې پر هغه ښځه باندې حد تطبیق نشي، چې د دوی حیثیت ته صدمه ونه رسیږي، خو جناب حضرت محمد مصطفیٰ «ص» د یو بې مثله عادل قاضي په صفت ورته وویل:

«پر خدای مې دې سوګند وي، که زما لور فاطمه غلا وکړي نو لاس به یې پرې کیږي» یعنی شرعی حد به پرې تطبیقیږي. (۱)

همدا راز عمر فاروق «رض» پر خپل زوی د زنا حد د دورو په وهلو تطبیق کړ، او حضرت علی کرم الله وجهه چې امیر المومنین و له یوه یهودي مدعي سره یو ځای د قاضي په وړاندې محکمې ته حاضر شو.

تاریخي روایات وایي لومړنی رسمی قاضی چې د حضرت پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم لخوا موظف شو (حضرت شریح «رض») و. زموږ په ګران هیواد کښې قضا ډیره اوږده سابقه لري په دې معنی چې زموږ په هیواد کښې داسې قضاء او د فردي او ټولنیزو مناسباتو د حل لارې موجودې دي، چې تر اوسه یې هم خپل موجودیت په هغه لرغوني بنه ساتلي دی، لکه چې اوس هم هغه پخوانۍ جرګې او مرکې موجودې دي.

---

(۱) کتاب السرقة - باب الشفاعة - مشکوة حواله بخاری، مسلم او نسايي.

سره له دې تر پخوانيو زمانو څخه زيات د خلکو په ټولنيز ژوند کښې بدلونونه راغلي دي خو دا چې جرگې او مرکې د خلکو له روحي او ټولنيز جوړښت سره سمون لري، د قضاء تر څنگه زموږ په هيواد کښې د بلې رسمي قضاء حيثيت لري حتى د اسلامي امارت په موجوديت کښې داسي قضې ليدل کيږي، چې محاکمو ته له سپارلو نه ړاندي يا وروسته د حکومتي مقاماتو له خوا جرگو ته سپارل کيږي چې د دواړو دعوه گيرو په قناعت اوارې شي چې دغې ته ورته حالت په ځينې هيوادونو کښې د اصلاحي محاکمو پواسطه مينځ ته راځي.

په هر صورت له نن څخه کابو زر کاله وړاندې د بت شکن سلطان محمود غزنوي په دور کښې د غزني په لرغوني ښار کښې د عروس الفلک (۱)

په نامه جومات (مسجد) و چې ديني علماء به پکې راټوليدل او مسئلې به ورته د فيصلې لپاره وړاندې کيدې، خو د افغانستان د قضا د تاريخ له مطالعې څخه داسې څرگنديږي چې (۱۹۱۹) م کال پورې زموږ په هيواد کښې قضايي چارو انسجام، توحيد او عموميت نه درلود په دې معنى چې يوازې په لويو ښارونو کښې چې ديني علماء موجود وو، قضاوت ممکن و، خو په محلاتو کښې دا کار ناشونی و

کله چې له (۱۹۱۹) م کال څخه وروسته په هيواد کښې يو پراخ ريفورم پيل شو اساسي قانون منځ ته راغی او ورسره نور فرعي قوانين هم جوړ شول او د قضاء او محاکمو په برخه کښې بدلون رامنځ ته شو.

تاريخي روايات وايي چې اعليحضرت امان الله خان په يوه حقوقي مسئله کښې د مدعی' عليه په صفت محکمې ته غوښتل شوی و، چې دا مطلب په هغه دور کښې د قضاء پراهميت باندې دلالت کوي، همدا راز په جزايي برخه کښې د تمسک القضاة (امانيه) مينځ ته راتگ څه عادي خبره نه وه.

(۱) سلطان محمود به د جمعې او دواړو اخترونو لمونځ پدې جومات کښې ادا کاوه (۷۱) محرابونه يې درلودل اوس يې ساحه وړه شوې ده د پخوانيو محرابونو څخه يې صرف يو پاتې دی او اوس د جمع اوليا د جامعه جومات په نوم ياديږي د خوجه اقبال قريه هم پخوا د عروس الفلک د جومات په ساحه کښې راتلله.

د دریم اساسي قانون په دوره کښې د پرمخ تللې نړۍ له غوښتنو سره سم د قضاء په برخه کښې لوی بدلون منځ ته راغی، قضاء د دولت د دوو نورو (مقننه او اجرائیه قواوو تر څنګ) یو خپلواک رکن ومنل شو. محاکم چې پخوا د عدلیې وزارت جزو، له اجرائیه قوې بیل شول او د تشکیل له نظره د قضائیه قوې په چوکاټ کښې د یو خپلواک رکن په حیث وپیژندل شول. د افغانستان قضاییه قوه «د صلاحیتونو او تشکیلاتو» د ځانګړي قانون درلودونکې شوه، چې د یوې سترې محکمې او له نورو څو محکمو څخه جوړه شوې قوه وه د سترې محکمې مشر یا په بل عبارت د قضائیه قوې مشر ته (قاضی القضاة) وایی، ستره محکمه چې په افغانستان کښې لوړ قضایی مقام دی یوه عالي شوری او څو دیوانونه لري.

ستره محکمه د دریم اساسي قانون د (۱۲۷) مې مادې له حکم سره سم په (۱۳٤٦) هـ، ش کال د میزان په (۲۲) مه تاسیس شوه. په افغانستان کښې محاکم درې مرحله یی دي (ابتدایه محکمه، مرافعه محکمه او د تمییز محکمه) چې ابتدائیه محکمه په ولسوالۍ کښې، مرافعه په لایت کښې او د تمیز محکمه د هیواد په پلازمینه (مرکز) کښې وی.

خو د عامه امنیت ضد جرمونو د فیصلې لپاره ابتدائیه محکمه په ولایت کښې د مرافعې محکمې د عامه امنیت دیوان او دویمه او دریمه محکمه یعنې استیناف او تمییز د هیواد په مرکز کښې وي. د دریم اساسي قانون د مندرجاتو له مخې تورن یوازې هغه وخت مجرم ګڼل کیده چې د صلاحیت لرونکې محکمې په قطعي حکم به محکوم شو.

د تمییز محکمه په افغانستان کښې نهایی او اخری محکمه ګڼله کیږي صرف په هغو مواردو کښې چې د کوم مجرم د اعدام حکم به په منځ کښې و، د پاچا منظوري به هم غوښتل کیده، په محاکمو کښې متهم ته د دفاع حق ورکړ شوی و او د مدافع وکیلانو قانون هم منځ ته راغلی و، خو له بده مرغه چې له دریم اساسي قانون څخه وروسته په کودتایی نظامونو کښې د قضا او محاکمو هغه

استقلال پاتې نشو او نه متهم ته د دفاع هغه ډول حق ورکړ شو چې اساسي قوانینو او یا د بشر د حقوقو اعلامیې تضمین کړی و، په تیره بیا سیاسي متهمینو ته.

هر کود تایي نظام خپل مخالفین پخپلو فرمایشي قاضیانو وځپل او هیچا ددې پوښتنه ونکړه چې ایا دا بې وسه انسانانه د ځان د دفاع حق لري؟ کوم تورن، په کومه محکمه کښې، د کوم مدافع وکیل پواسطه د ځان څخه دفاع وکړه؟ (۱)

عجبه خو لا دا وه، چې د ملګرو ملتونو استازي د بشر د حقوقو څارونکی پروفیسر (ارمه کورا) چې په وروستیو کلونو کښې څو وارې کابل ته راغی له دولتي مقاماتو سره به یې لیدنې وکړې، د (پل څرخي زندان) ته به یې هم سر ښکاره کړ، او د کابل د نوی ښار پرانتیک فروشیو به هم وګرځید، نو د وخت دولتي مطبوعاتو او ورسره، ورسره ځینو بهرنیو راډیوګانو به همدا خبر په شور زور خپور کړ، چې په افغانستان کښې د بندیانو حالت پروفیسر ارمه کورا له نظره د قناعت وړ دی.

ډیرو اوریدونکو به دا طمعه لرله، چې پروفیسور ارمه کورا به د خپل نړیوال فورس له مخې د بندیانو د محاکمې د څرنګوالی، د دفاع د حق او د

تحقیق په جریان کښې د جبر او اکراه پوښتنه وکړي، ځکه دا ټولې خبری د بشر د حقوقو نړیوالې اعلامیې تضمین کړی دي، خو دا یوازې هیله او خیال و.

که همدا افغانستان وي او د ملګرو ملتونو همدا باخبره او زړه سواندي استازی وي، له بدو څخه د بدو انتظار به کوو.

---

(۱) دا چې د افغانستان په محاکمو کښې د دعوی د اقامه کولو واک څارنوال (مدعی العلوم) ته ورکول شوی چې هغه یو حقوق پوه دي نو متهم هم دا حق لري چې د ځان څخه د یو حقوق پوه یعنی مدافع وکیل پواسطه دفاع وکړی. (ع)

په هر صورت په افغانستان کښې مامورين د ماموريت درجې او رتبې ته په پاملرنه څوک د وزير په منظورۍ، څوک د صدراعظم په منظورۍ او څوک د پاچا په منظورۍ ټاکل کيدل، خو قاضيان ټول د قاضي القضاة په پيشنهاد او د پاچا په منظورۍ ټاکل کيدل او گوښه کول يې هم څه اسانه کار نه و، قاضيانو ته د لوړ مقاماتو په شان د قانون له مخي مناسب معاش ورکول کيده، دا معاش د صدراعظم، وزيرانو، د شورئ د رئيسانو او غړو په شان د نورو مامورينو له معاش څخه لوړ معاش و او دا ددې لپاره چې قاضي رشوت اخستلو او خيانت کولو ته متې راونه نغاړي او د قضاء حيثيت او قدسيت وساتلی شي.

اوس چې د اساسي قوانينو او د دولتي قواوو د تفکيک بحث خپل انجام ته نږدې شوی دی، نو دا خبره ضرور ده چې اساسي قانون پر عادي قوانينو علويت (لوړوالی) لري.

د اساسي قانون علويت او له اساسي قانون سره د عادي قوانينو د سمون اصل د اروپا د اوولسمې او اتلسمي پيړۍ د طبيعي حقوقو د فلاسفه و له عقيدې څخه سرچينه اخلي، د دغو فلاسفه وو په عقيده دولت د ټولنيز تړون زيږنده او اساسي قانون د دغه تړون انځور او تجسم دی.

اساسي قانون د دولتی قدرت اورگانونه جوړوي او د دغو (مقننه، قضايه او اجرائيه) اورگانونو د واک حدود او د فعاليت بڼه ټاکي، له هغه ځايه چې د دولتي اورگانونه د اساسي قانون زيږنده دی، نو مکلفيت لري، چې له يوې خوا پخپلو اجراأتو کښې اساسی قانون د دولت د تر ټولو لوړې قاعدې (قاعدو) په توگه رعايت کړی او له بلې خوا هغه قوانين چې د دولتي قدرت د اعمال په مقصد يې وضع کړی د اساسي قانون له حکمونو سره سمون ولري.

# دولسم څپرکی

# پوهنه او لوړ تحصيلات

یو پوه وایي «هر چیرې چې د یو ښوونځي دروازه پرانستل کیږي هلته د یوه زندان دروازه تړل کیږي».

په هیواد کښې د امیر شیرعلی خان په دوره کښې لومړی ځل غالباً په (۱۸۷٤)م کال کښې نوی ټیپ دوه مکتبونه (یو نظامي او بل ملکي) تاسیس شول او په (۱۲۸۲)هـ،ش کال د حبیبې د مکتب جوړیدل د امیر حبیب الله خان په وخت کښې د نوي معارف پیل گڼل کیږي چې وروسته په (۱۲۸۸)هـ، ش کال یو لومړنی ښوونځی او یو حربي ښوونځی تاسیس شول او بیا تر (۱۲۹۱)هـ، ش په کابل کښې څو نور کلیوالي ښوونځي مینځ ته راغلل. همدا راز په (۱۲۹۱)هـ،ش کال لومړنی دارالمعلمین په کابل کښې تاسیس شو، د اعلیحضرت امان الله خان د سلطنت په وخت کښې د عصري معارف د رواج کولو لپاره لوی گامونه اوچت شول په کابل او ولایاتونو کښې یو شمیر لومړني ښوونځي تاسیس شول، د فرانسې په مرسته د استقلال او د المان په مرسته د نجات (اماني) لیسې پرانستل شوې، پخوانی دارالمعلمین نهم ټولگي ته لوړ کړای شو.

د لومړي ځل لپاره د نجنو مکتب پرانستل شو څه موده وروسته د هغوی یو تعداد د لوړوزده کړو لپاره ترکی، المان او فرانسې ته واستول شوې.

په سقاوي دوره کښې د هیواد د معارف حرکت لکه د نورو چارو په ټپه ودرید. د اعلیحضرت محمد نادرشاه د سلطنت په دوره کښې بیا د نورو چارو تر

ثنګ د هیواد معارف ته توجه راوګرځیده خو دا دوره لنډه او ژر تېره شوه، سره له دې هم د دې معارف پالونکی پاچا په وخت کښې په (۱۳۱۱) هـ، ش کال د طب د پوهنځي په تاسیس د کابل پوهنتون بنسټ کیښودل شو چې په هغه وخت کښې د طب پوهنځی (۸ تنه) محصلین یو کورنی او درې بهرني استادان درلودل.

د اعلیحضرت محمدظاهر شاه په دوره کښې که له یوی خوا د پوهنې کار ښه په درز کښې مخ پر وړاندی روان و له بلې خوا د لوړو تحصیلاتو په ساحه کښې هم په زړه پورې انکشاف رامنځ ته شو او د کابل پوهنتون نور پوهنځي یو د بل پسې په لاندې ډول تاسیس شول: (۱)

* د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځي (۱۳۱۷) هـ، ش
* د علومو پوهنځی (۱۳۲۱) هـ،ش
* د ادبیاتو پوهنځی (۱۳۲۳) هـ، ش
* د شرعیاتو پوهنځی (۱۳۳۰)هـ، ش
* د کرنی او انجینری پوهنځي (۱۳۳۵) هـ،ش
* د اقتصاد پوهنځی (۱۳۳۶) هـ،ش
* د دواجوړول (فارمسي) پوهنځی (۱۳۳۷) هـ، ش
* د ښوونې او روزنې پوهنځی (۱۳٤۱) هـ، ش
* د د وترنری پوهنځی (۱۳٤۲) هـ ،ش
* د پولي تخنیک انستیتیوت (۱۳٤۳).
* په (۱۳۵۱) کال کښې د ننګرهار د طب پوهنځی د ننګرهار په پوهنتون بدل شو او نور پوهنځي نوموړی پوهنتون په چوکاټ کښې یو په بل پسې تاسیس شول.

د ننګرهار پوهنتون ډېر ښکلی موقعیت لري، ځکه ښه هوا او پراخه ساحه یې هر څوک ځانته راجلبوي، د دروننې د بریښنا بند نیږدې والي ورته په زړه پورې ښکلا وربخښلې ده د دې پوهنتون تاسیساتو کابو (٦۰۰) جریبه ځمکه رانیولی ده.

(۱) د تعاون مجله اتم کال لومړی ګڼه، حمل، ثور.

چې د هر ډول پرمختيا لاريې وربرابره کړې ده او په اوسني حالت کښې ددې ساحې پراخوالي د محصلينو او استادانو په آرامتيا کښې پوره برخه اخستې ده.

په (۱۳۶۰) هـ، ش کلونو په دوران کښې د کابل پوهنتون د محصلينو شمير تقريباً نه زره تنو ته رسيده چې څه ناڅه نيمايي برخه يې نجونې وې همدا راز (۸۰) تنه بهرني محصلين هم پکې په زده کړه لګيا و. د کابل پوهنتون په نړيوال کچ کتابتون، مجهز لابراتوارونه، تحقيقاتي فارمونه او درسي لوازمات درلودل، بې شکه يو وخت کابل پوهنتون په سيمه کښې ساری نه درلود، د نړۍ له لويو پوهنتونونو سره يې تواميت او د استادانو دوه اړخيز تګ راتګ درلود، سړی په جرات سره ويلای شي چې په کابل پوهنتون کښې پر بهرنيو استادانو سربيره داسې پياوړي کورني استادان په تدريس مشغول وو، چې نړيوال شهرت يې درلود او همدا نن د امريکا، کاناډا، انګلستان، فرانسې، جرمني، استراليا او عربي هيوادونو پوهنتونونه او علمي محفلونه پرې روښانه دي په ظاهرشاهي دوره کښې د هيواد د دارالمعليمنونو انکشاف هم پخپل ځای د يادونې وړ دی، خو له بده مرغه نن سبا نږدې ده چې د نظرماتي لپاره معلم پيدا نشي، که د نړيوالو همدا پېرزوينه وه او زموږ همدا نفاق نو خدای مکړه له سواد څخه به هم محروم شو.

ما ويل چې دا ړانده به پرې بينا شي دې تهذيب خو ړول بينا را ته ړانده کړه.
سيد رسول «رسا»

د هيواد د تحصيلي موسسو درسي کيفيت د (۱۳۵۷) هـ، ش راهيسې مخ په ځوړ شو، که څه هم له کمي پلوه پکې څه مثبت تغييرات راغلل، لکه نن سبا چې د کابل پوهنتون، د ننګرهار پوهنتون، مزار پوهنتون، کندهار پوهنتون، هرات پوهنتون، د هرات اسلامي پوهنتون چې د شمار له پلوه خو ورته د سړي زړه ښه شي، خو مالي او تخنيکي ستونزو د درسي وسايلو د نشتوالي او د پياړو استادانو د کمي له امله وړ (مناسبه) استفاده ورڅخه کيدای نشي.

د يادونې وړ ده چې د ديني علومو د زده کړې لپاره له (۱۳۵۷) هـ، ش کال

ښځه د مخه په هیواد کښې د امام ابوحنیفه مدرسه، د کابل عربي دارالعلوم، نجم المدارس، اسدیه مدرسه او د تخارستان مدرسه د ښو او پیاوړ مدرسینو په درلودلو سره موجودې وې، همدا راز د قرآن مجید د حفظ لپاره دارالحفاظونه موجود وو.

په هر صورت د هیواد د عالي تحصیلاتو د مرکزونو علمي کدرونه د ځانګړي مقررې د احکامو له مخې تاکل کیدل، یعنې یوازې هغه اشخاص د پوهنتونو په علمي کدر کښې شاملیدای شول چې د هیواد د ننه او یا بهر به یې د اړونده مسلک د لوړو نومرو ډیګري تر لاسه کړی وه. د افغانستان د پوهنتونونو د علمي کدر علمي رتبې په دې ډول وې:

نامزد پوهیالی، پوهیالی، پوهنیار، پوهنمل، پوهندوی، پوهنوال، پوهاند، چې په هره علمي رتبه کښې د استاد تدریسي او تحقیقی مکلفیت توپیر درلود، همدا راز له یوې رتبې ځخه بلې علمي رتبی ته ترفیع هم خاص شرایط او مکلفیتونه درلودل او هره علمي رتبه د مشخص مادی امتیاز درلودونکې وه زموږ په هیواد کښې یوازې پوهاند ته پروفیسر ویل کیده، خو دلته په پاکستان کښې تولو هغو استادانو ته چې له لسم ټولګي ځخه په لوړو کلاسونو (ټولګیو) کښې تدریس کوي پروفیسر وایی.

د یادونې وړ ده چې د هېواد یو شمیر بچیان په حربي پوهنتون، هوایی پوهنتون د پولیسو په اکاډمی، د تخنیک په اکاډمی او د مسلحو قواوو د طبی علومو اکاډمی کښې روزل کیدل، دې تحصیلي موسسو ډیر ښه درسي او مجهز لابراتورونه تدریسی بېزونه او ورکشاپونه درلودل چې له بدمرغه دا وخت د جنګ بلا خوړلي دي د پیداکوژی انستیتیوت او د ښوونکو اکاډمی د مسلکي استادانو او د بدني روزنی انستیوت د سپورت د پیاوړو استادانو د روزلو مرکزونه وو.

# د یارلسم څپرکی

# د هیواد نومیالي

بلخي ابن سینا زوکړه (۳۵۹ هـ.ق):

د بلخي ابن سینا پلار عبدالله د بلخ له نومیالیو څخه و او په اسکندریه نومي سیمې کښې یې هستوګنه درلوده. د منصور بن عبدالمالک سلماني د واکمنۍ په وخت کښې بخارا ته ولاړ چې د سامانیانو پایتخت و. د خپلې پوهې او تدبیر په برکت ډېر ژر د دربار په مخورو کښې حساب شو، د نوح بن منصور له خوا د (خورمشین) د سیمې حاکم مقرر شو، هلته یې د «آفشینه» په کلي کښې ستاره نومې ښځه په نکاح کړه، په یوه روایت په (۹۷۳) م کال او په بل روایت په ۹۸۰ م کال کښې په افشینه نومي کلي کښې عبدالله ته خدای «ج» زوی ورکړ او نوم یې پرې «حسین» کېښود چې وروسته یې نړیوال شهرت وموند.

هغه ته الله پاک لوړ استعداد او قوي ذهن ورکړی و او په شپاړس کلنۍ کښې د خپلې سیمې په نومیالیو عالمانو او طبیبانو کښې وشمېرل شو. په (۲۱) کلنۍ کښې یې د کتابونو په تالیف پیل وکړ هغه په لیکلو کښې ډېر چټک و د خپل مشهور اثر (شفا) اتلس ټوکه یې په شلو میاشتو کښې ولیکل.

ابن سینا په دري، ترکي او عربي ژبو تالیفات کول، د هغه ځینې آثار همدا اوس د اروپا او نړۍ د نورو هیوادونو په پوهنتونو کښې تدریس کېږي. د ابن سینا د تالیف شویو او ترجمه شویو آثارو شمېر (٤٥٤) جلدو ته رسېږي.

دغه نومیالی عالم او فیلسوف لومړۍ د قولنج او بیا د میرګي (صرع) په

ناروغی اخته شو او په ٤٢٨ هـ، ق ( ١٠٣٧ م ) کال د روژې د میاشتې په لومړۍ نیټه د جمعې په مبارکه ورځ په همدان کښې وفات او هم هلته خاورو ته وسپارل شو. وایي چې ابن سینا د ځنکدن په وخت هم دا بیت تکرار اوه:

(نموت و لیس لنا حاصل       سوی علمنا انه ما علم)

یعنی مرو او بې له دې نه مو نور څه حاصل نه کړه چې پدې وپوهیدو چې په هیڅ نه یو پوهیدلي. سلطان محمود غزنوي ډیره هڅه وکړه چې ابن سینا په ژوند غزني ته راولي خو پدې کار کښې بریالی نه شو.

## سلطان محمود غزنوي:

زموږ د هیواد نومیالی واکمن په (٣٦١) هـ، ق کال زیږیدلی پلار یې سبکتګین نومیده دې د خپل هیواد نومیالی واکمن و د محمود مور د زابل وه، ده ته د یو نومیالي واکمن د زوی په حیث د ښوونې، روزنې او پالنې ټول شرایط برابر و، مروجه علوم یې له نامتو عالمانو څخه ولوستل، سیاسي او د حکومت کولو لارې چارې ورته خپل پلار ښوولې، هغه خپل ټولې لارښوونې په یو کتاب کښې چې (پند نامه) نومیده لیکلې وې او خپل زوي ته یې تدریسولې، محمود ډیر پوه، پیاوړی، نخښه ویشتونکی او توررزن ځوان شو، په (٣٨٧) هـ، ق کال د پلار تر مرګه وروسته په غزني کښې واکمن شو او د مملکت د چارو سمون ته یې مخه کړه له (٣٩٢ - ٤١٨) هـ، ق کال پورې په هند (١٧) ځله لوی او واړه بریدونه وکړل. د نوموړی ددې هیواد زیاتره سیمې یې ونیولې هلته یې د اسلام مقدس دین خپور کړ او د لوی فاتح او بت شکن لقب یې وګاټه. هغه په دې بریالی شو چې له اصفاهانه نیولې تر عراقه، همدان او طبرستان پورې، ختیځ ته په هند کښې د ګنګا تر څنډو پورې، د شمال پر خوا تر خوارزمه پورې، جنوب خواته د بلوچستان تر سواحل او کایتا وار پورې لویه امپراطوري او شهنشاهي جوړه کړي. دا لوی هیواد یې له ګنګا څخه د دجلې او فُرات تر څنډو پورې ټول د غزني د مرکزیت تر اداري لاندې راوست. د سلطان محمود غزنوي په وخت کښې زموږ هیواد د علم، هنر او تمدن ستر مرکز و. سلطان له ټولو نیول شویو سیمو څخه

عالمان، ادیبان، د هنرونو او فنونو استادان غزني ته راوستي او پخپل دربار کښې یې ځای ورکړی و او د هغوی درناوی یې کاوه.

حسن میمندي چې یو عالم او فاضل شخصیت و، د سلطان محمود له ډیرو مشهورو وزیرانو څخه و او سلطان به زیاترو چارو کښې له هغه او د حکومت له نورو مهمو ارکانو سره سلا مشوری کولې، دا چې سلطان محمود غزنوي د خپلې واکمنۍ په وخت له یوې خوا زموږ د هیواد د علمي او عرفاني پرمختګ لپاره د ستاینې وړ هڅې او کوښښونه کړي دي او له بلې خوا یې د یو مسلمان واکمن په توګه د اسلام د مقدس دین د خپراوي او لوړوالي لپاره نه ستړې کیدونکي هلې ځلې کړې او ویاړلی تاریخي کارنامې یې پرې ایښې دي نو ځکه زموږ د خلکو په زړونو کښې خاص مقام لري، دغه نومیالي واکمن له (۳۳) کاله واکمنۍ څخه وروسته په (۴۲۱) هـ، ق کال د سل په ناروغۍ د (۶۱) کالو په عمر په غزني کښې وفات او هم هلته په (فیروزه) ماڼۍ کښې خاورو ته وسپارل شو.

## ابو ریحان البیروني:

نوم یې محمد په ابو ریحان البیروني مشهور دی په (۳۶۲) هـ، ق (۹۷۳) م کال د پنجشنبې په ورځ د خوارزم په بیرون نومي ځای کښې زیږیدلي دی د پلار نوم یې احمد و، د ریاضي د لوی عالم ابو منصور شاګرد و، د خپل لوړ استعداد له مخې پدې بریالی شو چې د ځوانۍ په لومړیو کښې کتابونه تصنیف او تالیف کړي او ډیر ژر په ټوله سیمه کښې د نوم او شهرت خاوند شو، کله چې سلطان محمود غزنوي خوارزم ونیو او هغه یې د غزني د واکمنۍ جز وګرځاوه نو یې له نورو عالمانو او پوهانو سره یو ځای البیروني هم غزني ته راوست، د هغه درناوی یې کاوه او ورڅخه یې مشورې اخستلې، البیروني په نجوم کښې هم پوره معلومات درلود، وایي چې یوه ورځ سلطان محمود غزنوي پخپل فیروزه نومي باغ کښې ناست و البیروني یې راغوښت او ورته یې وویل چې ته د خپل نجوم له مخې معلومه کړه چې زه به نن له دې باغ څخه په کومه دروازه بهر ته ووځم؟ البیروني څه فکر وکړ، بیا یې په کاغذ څه ولیکل او هغه یې د بالښت لاندې

کیښودل. سلطان محمود امر وکړ چې بیل او کُلنګ راوړی او پر دغه لمرخاته خوا ته دیوال کښې سوری وکړی چې زه پری بهر ته ووځم. خلکو همداسی وکړل بیا یې د البیروني کاغذ راوغوښت چې پکې لیکل شوي وو، پاچا به له دې یوې دروازې څخه هم ونه وځي، لمرخاته خواته دیوال به سوری کوي او پر هغې به بهرته وځي، او داسې نورې ډیرې پیښې یې پیشګویی کړې وې.

البیروني په سغدي، فارسي، خوارزمي، عربي، عبراني، سریاني او سانسکریت ژبو پوهیده او (۱۹۵) په شاوخوا کښې تالیفات یې درلودل.

دا نومیالی عالم، مورخ او منجم د (۴۴۰ هـ، ق) د رجب په دویمه د (۱۰۴۸ م) کال دسمبر په (۱۱) مه د جمعې د ورځی په ماښام په غزني کښې مړ شو او هم هلته ښخ دی.

## - خواجه عبدالله «انصاری»:

د هیواد نومیالی عالم او عارف شیخ الاسلام خواجه عبدالله «انصاري» رح په (۳۹۶) هـ، ق د هرات پر کهن دژ کښې زیږیدلی. پلار یې ابو منصور محمد د خپل وخت یو عالم، پرهیزګار، د قرآن عظیم الشان حافظ او د دکانداری په کار مشغول و. خواجه عبدالله «انصاری» له وړوکوالی څخه د قوی ذهن او لوړ استعداد خاوند و، د هیواد نامتو عالمانو، عارفانو او صوفیانو لکه یحی بن اعمار «شیبانی»، شیخ ابو اسمعیل، او محمد بن حمزه دده روزنې ته توجه کړیده، په (۲۱) کلنۍ کښې یې نیشاپور ته سفر وکړ، له عارفانو او عالمانو څخه یې فیض حاصل کړ، حج ته یې سفر وکړ او پدې سفر کښې یې د ډیرو عالمانو او عارفانو سره لیدنې وکړې، ډیر شهرت یې وموند، د حاسدانو په تحریک د سلطان مسعود دربار ته احضار شو ټول تومتونه یې رد کړل او په عزت رخصت شو. د سلجوقیانو په دوره کښې بیا د حاسدانو په تحریک ګرفتار او پوشنج ته نږدې یو کال بندي و بیا آزاد شو.

خواجه انصاري نه یوازې دا چې لوی مفسر، محدث، عالم، عارف، صوفي او د طریقت خاوند و نومیالی لیکوال او شاعر هم و، خپل آثار یې په دري او

عربي ژبو ليکلي دي چې زياتر يې په خواږه مسجع نثر دي. دغه نوميالي عارف، ستر صوفي، ديني عالم، مبلغ، مدرس، ليکوال او شاعر په (٤٨١) هـ، ق کال وفات او د هرات په گازرگاه کښې خاورو ته سپارل شوی دی. د هغه د تاليف کړيو او هغه ته د منسوبو آثارو شمير (٣٣) ښوول شويدی. د خواجه عبدالله انصاري د مناجاتو يوه نمونه داده:

## الهي

*الهی! عاجز و سرگردانم، آنچه دارم دانم و نه آنچه دانم دارم.*

*الهی! مکش این چراغ افروخته را، و مسوز این دل سوخته را*

*الهی! هر کرا برانداز، با درویشان در اندازی.*

*الهی! همه توئی ما هیچ، سخن این است بر خود مپیچ.*

*الهی! گفتی کریمم، امیدبدان تمام است، تاکرم تو در میان است ناامیدی حرامست*

## مولانا جلال الدين بلخي

د اسلامي نړۍ دغه ستر عالم او عارف مولانا جلال الدين محمد په (٦٠٤) هـ، ق کال زموږ د هيواد په لرغوني ښار بلخ کښې زيږيدلی دی، پلار يې محمد بن حسين (خطيبي) نوميده د بلخ له نوميالیو عالمانو او فاضلانو څخه و. مولانا (١٤) کلن و چې پلار يې د حج په نوم بغداد ته روان شو، مولانا يې هم له ځان سره بوت. نيشاپور ته ورسيدل او د شيخ فريد الدين (عطار) ليدلو ته ورغلل، هغه جلال الدين په غيږ کښې ونيو، دُعا يې ورته وکړه او د (اسرار نامې) مثنوي يې د هديې په توگه ورکړه.

د حج د فريضې له ادا کولو وروسته ملاطي بيا د لارنده په نوم ښار، بيا د ترکيې مرکز قونيې ته ولاړل، پلار يې په (٦٢٨) هـ،ق، کال وفات شو، بيا مولانا شام ته سفر وکړ په همدغه ځای کښې يې له عرفاني او روحاني ستر شخصيت (شمس تبريزي) سره آشنا شو چې په مولانا يې ژوره اغيزه وکړه او هغه يې د خپل مرشد په توگه قبول کړ. مولانا خپل د اشعارو لوی ديوان

هم د حقيقي مينې له امله د خپل مرشد د (شمس تبريز يې کُليات) په نوم ياد کړی دي.

د مولانا مشهور اثر (مثنوی معنوي) نوميږي چې (۲٦) زره بيتونه لري په نثر کښې يې مشهور اثر (فيه مافيه) نوميږي. د مولانا آثار نړيوال شهرت لري او په بهرنيو ژبو ترجمه شوي دي، مولانا په (٦٧۲) هـ، ق د (٦٨) کالو په عمر په ترکيه کښې وفات او هلته ښخ شو.

## شيخ متي بابا «رح»:

شيخ متي چې په کلات بابا هم مشهور دی په (٦۲۳) هـ، ق کال زيږيدلی پلار يې عباس نوميده د غورياخيل خليل قبيلې ته منسوب و. شيخ متي د خپل وخت نوميالی عارف، عالم او فاضل شخصيت و او په خلکو کښې يې ډير مقبوليت درلود. نعمت الله (هروی) په مخزن افغاني کښې دده په هکله ليکي:

«نوموړي به خپل ژوند په عبادت رياضت د خدای تيراوه، خلکو پر هغه ډيره کلکه عقيده درلوده، ډلې، ډلې به راتلل او دده د مريدانو په حلقه کښې به شاميليدل. د پټې خزانې مولف محمد هوتک وايي چې (شيخ متي لوی زاهد، عابد او پر خدای «ج» مين سړی و، عالم او د دين مرشد او روحاني ژوند يې کاوه)

د شيخ متي بابا د مړيني وروسته هم دده په کورنۍ کښې د علم او عرفان سلسله جاري پاتې شوې ده، د لرغوني پښتانه ليکوال شيخ کته او د (تذکرة اولياى افغانی) مولف شيخ قاسم دده له اولادې څخه دي»

د شيخ متي بابا اولاده اوس هم د (متي زي) په نامه يادېږي. د بابا د صوفيانه شاعرۍ يو کتاب (د خدای مينه) په نوم له ده څخه پاتې شوی و چې تر ډيره وخته پورې به دده په مزار پروت و. دغه ستر عارف او نوميالی صوفي شاعر د (٦٥) کالو په عمر په (٦٨٨) هـ، ق وفات شو، زيارت يې اوس هم د کندهار ختيځ لور ته (٥٠ - ٦٠) کيلو متر ليرې پر يوه غونډۍ چې کلات يې بولي واقع دی او د (کلات بابا) په زيارت مشهور دی.

## گوهر شاد بیگم:

گوهر شاد بیگم زموږ د هېواد له ډیرو نومیالیو میرمنو څخه ګڼل کیږي د (پښتنې میرمنې) لیکوال عبدالروف بینوا په اټکلي توګه د هغه زوکړه د (۷۸۰ - ۷۸۵) هـ، ق کلونو تر منځ بولي، د ترخانیانو د قبیلې د مشر امیر غیاث الدین لور وه، د تیموري کورنۍ میرزا شاه رُخ ته یې ورکړه د دواړو کورنیو پخوانۍ زړه بدوالی په دوستۍ بدل شو، ګوهر شاد ډیره هوښیاره با تدبیره او علم پالونکې میرمن وه، دا چې د تیموري واکمن میرزا شاه رُخ د واکمنۍ په زمانه کښې علم او هنر ډیره ترقي کړې وه زیاتره تاریخ لیکونکي یې د همدغې میرمنې له برکته ګڼي. ددغې میرمنې په حکم او غوښتنه ډیر عمراني کارونه تر سره شوي دي چې تفصیل یې پدې کرښو کښې نه ځایږي، صرف مشت نمونهء خروار دلته یادوو، یوه لویه مدرسه چې په (۲۱) کلونو کښې یې د معمارۍ او نقاشۍ چارې سرته ورسیدې جوړه کړه.

بل لوی مسجد یې په مشهد کښې جوړ کړ چې لرغون پیژندونکي یې د نړۍ د لسو ډیرو لویو او مهمو ودانیو څخه بولي. ددې مسجد کار په (۸۲۱) هـ، ق کال پیل او دولس کاله وروسته سرته ورسید، دا نومیالۍ میرمن د میړه له مرګ څخه وروسته د سلطان ابوسعید په لاس په ډیره بې رحمۍ ووژل شوه قبر یې د هرات د ښار لویدیځ خواته اسلام قلعه ته نږدې د کوهستان په سهمه کښې دی.

## مولانا عبدالرحمن «جامي» رح:

نوم یې عمادالدین چې په نورالدین عبدالرحمن «جامي» مشهور دی، په (۸۱۷) هـ، ق کال په هرات کښې زیږیدلی، پلار یې نظام الدین احمد «جامي» نومیده. مولانا ښه استعداد درلود لومړنۍ مروجه دیني زده کړې یې له خپل پلار څخه کړې بیا یې د هرات په (نظامیه) مدرسه کښې لوړې زده کړې تر لاسه کړې او د نورو زده کړو لپاره سمرقند ته ولاړ هلته یې له قاضي زاده څخه چې مشهور نجومي او ریاضي پوه و د علم او حکمت کتابونه ولوستل، دیني او ادبي علوم

بې زده کړل، د عرفان او تصوّف په هکله یې ژوره مطالعه وکړه او په (۱٤٥۲) م کال خپل وطن ته راغی.

دده علمي مقام په سلطان حسین بایقرا او د هغه پر وزیر امیر علي شیر نوایي باندې ډیره اغیزه وکړه او دواړه د جامي سخت ارادت مند شول پاچا به جامي په مجلس کښې تر ټولو لوړ کښیناوه او په ډیر عجز او درناوي به یې د هغه خبرې اوریدې.

مولانا جامي نه یواځې دا چې د دیني علومو لوی عالم، مفسر، محدث او فقهي و، نومهالی ادیب، شاعر او لیکوال هم و، په نظم او نثر یې ډیر کتابونه، لیکلي دی، دده د تالیفاتو شمیر (۹۹) ښودل شوی دی. دده د آثارو له ژورې مطالعې څخه وروسته سړی دا حکم کولای شي چې جامي د خپل عصر ستر عالم، عرفاني شخصیت پیاوړی مبلغ، مدرس، نومیالی لیکوال او شاعر.

مولانا جامي په (۸۹۸) هـ، ق کال د محرم په میاشت په هرات کښې وفات او د سعدالدین کاشغري تر څنګ په ډیر درناوي خاورو ته وسپارل شو. سلطان حسین بایقراء له سختې ناروغۍ سره، سره دده په جنازه کښې ګډون وکړ او د دولت نور ټول مشران هم په جنازه کښې حاضر و.

## امیر علي شیر نوایي:

نظام الدین علی شیر نوایي په (۸٤٤) هـ،ق کال د روژې د میاشتې په اولسمه د هرات په لرغوني ښار کښې زیږیدلی دی، پلار یې غیاث الدین کچکینه بهادر نومیده چې د تیموري واکمنو د دربار له مخورو څخه او مورېې د کابل له امیرزاده ګانو څخه وه لومړنۍ زده کړې یې په هرات کښې د سلطان حسین بایقرا سره یو ځای دربار له عالمانو او پوهانو څخه وکړه، د لوړو زده کړو لپاره مشهد او له هغه ځایه سمرقند ته ولاړ، خواجه فضل الله په مدرسه کښې یې دیني، شرعي او عقلي علوم ولوستل لوی عالم او فاضل ترې جوړ شو، دی لومړی د سلطان حسین بایقراء مهرور دار او وروسته وزیر شو. دی ډیر علم پالونکی او هنر پالونکی شخصیت و، دده په وخت کښې په دربار کښې ډیر

عالمان، ادیبانا و هنرمندان لکه رسامان، نقاشان، خطاطان او نور ورزل شول او د عامه خیر ښگینې لپاره ډیر کارونه وشول، د هرډول فساد د مخنیوي لپاره یې مبارزه کوله، مفسدو خلکو دده او پاچا تر منځه اختلاف پیدا کړ او په نتیجه کښې نوا یي له وزارت څخه لیری شو. علی شیر نوایی د خپل ماموریت په وخت کښې زیات شمیر مدرسې، جوماتونه، پلونه، رباطونه خانقاوی او حمامونه جوړ کړي و، پخپلو شخصي پیسو یې د انجیل د نهر په غاړه یو روغتون جوړ کړی و، نوموړی ستر ادیب (شاعر او لیکوال) هم و.

په ترکي، دري او عربي ژبو یې زیات شمیر آثار په نظم او نثر لیکلي دي چې د ټولو تر لاسه شویو کتابونو شمیر یې (۳۲) ته رسیږي په ترکي آثارو کښې یې خپل تخلص (نوایي) لیکلي او په دري آثارو کښې (فاني) راوړی دی په (۹۰۶)هـ، ق کال د (۶۲) کالو په عمر وفات شوی، قبر یې د هرات په خیابان یا د انجیل د نهر په غاړه واقع او وګړی یې په ډیر درناوي زیارت ته ورځي.

## استاد کمال الدین بهزاد :

استاد بهزاد د افغانستان مشهور او پیاوړی نقاش او رسام و په یوه روایت له (۸٤٤)هـ،ق او په بل روایت په (۸٥٤)هـ،ق په هرات کښې زیږیدلی مور او پلار یې په کوچنیوالي کښې مړه شوي، د سلطان حسین بایقرا د کتاب دار استاد میرک په کور کښې را لوی او وروزل شو، همدا راز له پیر سید احمد تبریزي څخه یې هم زده کړه کړیده.

د علم او هنر پالونکي وزیر امیر علی شیر نوایی له خاصې پاملرنې څخه برخوردار و. استاد د یو داسې هنر مند په توګه تبارز وکړ چې پخپله زمانه کښې یې ساری نه درلود، د ځانګړي سبک او لارې خاوند و د محمد شیباني په وخت کښې په هرات کښې اوسیده، د شاه اسمعیل (صفوی) په وخت کښې تبریز ته ولاړ د هغه د زوی شاه طهماسب په وخت کښې چې د استاد شاګرد هم و، هم هلته پاتې شو او په درناوي یې ژوند کاوه او ډیر شاګردان یې وروزل، ویل کیږي چې استاد بهزاد په (۹٤۳)هـ،ق کال د خپل خوریي رستم علي د لیدلو لپاره هرات

ته راغی له څه مودې ناروغتیا څخه وروسته وفات شو او د هرات د کوه مختیار په لمنه کښې ښخ شو.

زرغونه «کاکړه»:

دا نومیالی میرمن د کندهار د پنجوایي اوسیدونکې د ملا دین محمد کاکړ لور او د سعدالله خان نورزی میرمن وه، د علوموزده کړه یې له خپل پلار څخه کړې وه او وروسته د مطالعې په واسطه یې خپل معلومات پراخه کړل، ښکلی خط یې درلود.

وایی چې دې میرمن په (۹۰٦)هـ، ق د شیخ سعدي مشهور کتاب (بوستان) په پښتو ترجمه کړی او پخپل ښکلي خط یې لیکلی و. په پټه خزانه کښې د دې فاضلې میرمنې یادونه شوې ده او پوهاند عبدالحی «حبیبي» د پښتو ادبیاتو د تاریخ په دریم توک کښې د زرغونې (کاکړې) د ژوند د حالاتو او شعر د تشریح په ترڅ کښې لیکلی دی

«که مونږ په پښتو ادب کښې د اخلاقي شاعرانو لپاره یوه مخصوصه ډله ومنو، زرغونه کاکړه به له خپل بوستانه سره د هغوی په سر کښې ولاړه وي، مونږ زرغونه د شیخ سعدي«رح» د بوستان په منظومه ترجمه د اخلاقي شاعرانو له ډلې څخه بللی شو».

په هر صورت زرغونه پخپل وخت کښې لویه عارفه، عالمه او فاضله میرمن وه او ښه شاعره او خطاطه هم وه.

شیخ بوستان بړیڅ«رح»:

شیخ بوستان بړیڅ د لسمی هجري پیړی نیمایي شاوخوا کلونو کښې د قندهار په ښوراوک کښې سترګې نړۍ ته غړولي وی، پلار یې محمد اکرم په قوم بړیڅ د خپل وخت لوی عارف او ولي و او له هیلمنده راغلی و، شیخ بوستان هم د خپل پلار په شان په زُهد او تقوی مشهور او په علم او عرفان منور شو، وایی چې هندوستان ته ولاړ ظاهراً یې تجارت کاوه څو په حقیقت کښې یې د دنیا احوال ځانته معلوماوه، په ولیانو، عارفانو او بزرګانو پسې به یې تر لیرې سیمو پورې

سفرونه کول. د سوداګرۍ په څه ګټه به یې خپلې شپې او ورځې تیرولې او څه به یې په خوارانو او غریبانو ویشله په (۹۹۸) هـ، ق کال وطن ته راغی او د بوستان اولیا کتاب یې ولیکه. دویم ځل بیا هندوستان ته ولاړ دغه ولي او عارف په (۱۰۰۲) هـ، ق کال چې هندوستان کښې له یوه اوږده سمندري سفر څخه د ګجرات احمد آباد ته ورسید د اسهال د ورپیښې ناروغې له امله د جمعې په مبارکه ورځ د ماسپښین تر لمانځه وروسته وفات شو. نعمت الله هروي چې له ده سره په دې سفر کښې ملګری و پخپل کتاب (مخزن افغانی) کښې د ده د زُهد او تقوی په هکله او دا چې د څومره کراماتو خاوند و یادونه کړې ده. د هغه قبر په هندوستان کښې دی.

## نازو انا:

نازو آنا د هیواد د نومیالي مشر میرویس خان نیکه مور وه دا نومیالۍ میرمن په (۱۰۶۱) هـ، ق کال په (تازي) نومي ځای کښې چې د قندهار او قلات ترمینځ پروت دی زیږیدلې وه، پلار یې سلطان ملخی توخی نومیده چې د غزني تر جلدکه پورې د پرتو قبیلو مشر و. پلار هغه ښه وپالله عالمه او فاضله شوه، پلار یې هغه ښالم خان ته په نکاح کړه. خدای څلور زامن ورکړل چې مشر یې میرخان نومیده چې وروسته د افغانانو مشر او په میرویس خان نیکه مشهور شو. نازو آنا په ټول عمر کښې په دینداری، عدل، میرانې، سخاوت، میلمه پالنې، زړه سوي او مهربانۍ کښې ډیره مشهوره وه.

محمد هوتک لیکي:

«کله چې میریس خان وزیږید نوموړې میرمنې خوب ولید چې بیټ نیکه ورته وویل چې (ددې زوی ښه تربیت او پالنه وکړه، کله چې لوی شي، لوی، لوی کارونه به وکړي، د بیت الله په زیارت به ځان مشرف کړي او د هغه له نسله به داسې بادشاهان پیدا شي چې دین به روښان کړي.»

وایې چې کله میرویس نیکه په (۱۱۱۹) هـ، ق ملک د ګرګین د فساد، ظلم، فتنې او سلطې څخه خلاص کړ نو د شکر سجده یې وکړه او وې ویل:

(خدایه! دا هغه کار و چې ما ته خپلې مور راسپارلی و او د هغې د سرته رسولو وصیت یې راته کړی و ».

نازو انا سربیره پر دې چې ډیر عابده او پرهیز ګاره میرمن وه، خپل عمر یې په عبادت، ریاضت او د دیني او ادبی علومو په مطالعه او لوستلو تیراوه شاعره او ادیبه هم وه، د نوموړی نومیالی میرمنې یوه رباعي داسې ده.

سحرګه وه د نرګس لېمه لانده
څاڅکي، څاڅکي یې له سترګو څڅیده
ماوې څه دي ښکلی ګله ولې ژاړې
دې وې ژوند مې دی یوه خوله خندیده

د دې نومیالی میرمنې همدا ویاړ بس دی چې د میرویس نیکه په څیر ننګیالی او توریالی زوی یې خپلې تولنې ته تقدیم کړ.

میرویس نیکه:

میرویس نیکه زموږ د هیواد ملي مشر او نومیالی واکمن و د زیږیدنې کال یې (۱۰۸٤) هـ، ق اټکل شوی دی، پلار یې ښالم خان نومیده چې د قندهار د هوتکو د قبیلې یو منلی مشر و، موریې نومیالی نازو انا وه چې دده په روزلو کښې یې ستره ونډه درلوده. په زلمیتوب کښې یې د خراسان او هندوستان تجارت کاوه چې له مناسبې ګتې څخه به هم برخمن کیده او د اولسونو احوال به یې ځانته معلوماوه.

کله چې صفوي شاه حسین په (۱۱۰٦) هـ، ق کال د ایران واکمن شو، نوی مسلمان شوی ګرجې ګرګین نومی یې په کندهار کښې د خپل حکومت د حاکم په توګه مقرر کړ چې ډیر ظالم او بې رحمه سړی و، ډیر افغانان یې د صفوی ظلم او تیري قرباني کړل، پدې بدو ورځو کښې د خلکو سترګې یوازې میرویس خان ته اوښتې، هغه په ډیره پوهه او تدبیر له یوې خواد ملي وحدت په تامین او له بلې خوا ګرګین ته د نږدې کیدو پروګرام په کار واچوه، ترڅو ګرګین له منځه یوسي، اصفهان ته یې سفر وکړ د اصفهان په دربار کښې یې ځان د افغاني قبیلو د مشر

او گرگین د مشاور په توگه ومانه، گرگین ورڅخه ویریده او بندي یې اصفهان ته ولیږه. میرویس خان د خپلې پوهې، تدبیر، فصاحت، بلاغت او قوي منطق په برکت نه یوازې له بند څخه خلاص شو بلکې په ډیر درناوي د حج د تللو اجازهم ورکړل شوه، په حج کښې یې د گرگین په ضد د قیام فتوی له علماء څخه واخسته، بیرته اصفهان ته راغی له صفوي دربار څخه یې د خپلې مشرۍ او گرگین ته د مشورې ورکولو رسمي فرمان واخست، کندهار ته ولاړ، د (کوکران) او (مانجه) په کلیو کښې د افغاني مشرانو لویې جرگې دوه ځلې راوبللې د هغی په مشوره او ملاترې په ډیر تدبیر او درایت گورگین او د هغه لښکر تارو مار کړل. (۱)

بیا یې په پوره پوهه د هیواد ملکي او نظامي چارې سمبالې کړې، شاوخوا سیمې یې د کندهار په مرکزي حکومت پورې وتړلې، هیڅکله یې ځانته پاچا او امیر ونه وایه د یو پیاوړي او منلي ملي مشر په توگه یې هېواد اداره کاوه، هغه غوښتل چې صفوي حکومت ته عبرتناک درس ورکړي خو ژوند ورسره وفا ونکړه. د هغه نومیالي زوی شاه محمود هوتک ایران فتح کړ او هغه یې د خپلې واکمنۍ برخه وگرځوله.

میرویس نیکه له (۷ - ۸) کالو پورې د ویاړلو کارنامو وروسته په (۱۱۲۷) هـ ل کال وفات او د کندهار د نوي ښار لویدیځ خواته د کوکران په کلي کښې خاورو ته سپارل شوی دی.

## احمد شاه بابا:

زموږ د لرغونې هیواد نومیالی مشر احمدخان چې وروسته د واکمنۍ په وخت کښې د احمدشاه بابا په نوم یاد شوی دی، په (۱۱۳۵) هـ. ق کال په هرات یا د نورو په قول په ملتان کښې زیږیدلی دی، پلار یې زمان خان نومیده، د قام مشر و چې د احمدخان له زیږیدنې څو میاشتې وروسته مړ شوی، د احمدشاه پالنه او روزنه د هغه مشر ورور ذوالفقار خان او د هغه نومیالۍ مور زرغونې آنا کوله.

---

(۱) د گرگین د وژل کیدو او د هغه د لښکرو تارومار کیده پیښه پر (۲۹) زیقعده الحرام سنه (۱۱۱۹) وشوه.

ذوالفقار خان په (۱۱٤٤) هـ، ق کال له هرات څخه فراه او بیا کندهار ته ولاړ، شاه حسین «هوتک» ذوالفقار خان او احمد شاه بابا چې هغه وخت لس کلن و دواړه بندیان کړل او تر (۱۱۵۰) هـ، ق کال پورې شپږ کاله بندیان پاتې شول، دې زندان احمدشاه بابا ته د یوې مدرسې حیثیت لرلی او ډېر دیني او ادبي علوم یې پکې زده کړل، نادر آفشار چې د هندوستان د نیولو قصد درلود او کندهار یې نیولی و ډیر افغانان یې پخپل پوځ کښې شامل کړل نو په (۱۱۵٤) هـ، ل کال احمد شاه بابا هم د یو دراني افسر په توګه د نادر آفشار په پوځ کښې شامل او د خپلې پوهې په برکت د نادر آفشار د سفرونو ملګری شو. په (۱۱٦۰) هـ، ق کال چې نادر آفشار د (خبوشان) په فتح آباد کښې ووژل شو احمدشاه بابا او نور افغاني مشران له خپلو لښکرو سره قندهار ته راغلل دې مشرانو خپل هیواد ته د مشر د ټاکلو په خاطر د (شیر سرخ) په زیارت کښې لویه جرګه جوړه کړه د غونډې په نهمه ورځ صابرشاه نومي یو ملنګ له خپلې کوډلې راووت د هدیرې تر څنګ پتې څخه یې د غنمو څو وږي راپرې کړل او د احمدخان په پګړۍ کښې یې ورو ټومبل، دغسې احمدشاه بابا زموږ د هېواد د مشر او واکمن په توګه وټاکل شو.

احمدشاه بابا تر هر څه لومړی د ملي وحدت تامین ته پاملرنه وکړه او بیا یې د ملک ډیرې ضروري ملکي او پوځي ادارې د قومي مشرانو په مشوره سمبال کړې، بیا یې د لویې جرګې د پرېکړې له مخې د هغو سیمو د بیرته نیولو کار پیل کړ چې په ختیځ کښې مغولي حکومت او په لویدیځ کښې صفوي حکومت نیولې وې، هغه سیمې یې بیرته ونیولې او دا خواره واره قومونه یې په یو مرکز راټول کړل، یو غښتلی او متحد حکومت یې جوړ کړ، د هغه سیاسي او جغرافیوي حدود یې وټاکل او د افغانستان نوم یې پرې کیښوده د احمدشاه بابا د شمال، ختیځ او لویدیځ په لښکرکشۍ هیڅکله د تجاوز او پر اختیا غوښتنې په غرض نه وې، بلکې د افغانستان د دفاع یقیني کول او متجاوزینو د غرورونو تاوول یې هدف و.

هند ته يې سفرونه د هغه ځای د مسلمانانو، مذهبي او روحاني مشرانو او خصوصاً حضرت (شاه ولي الله) «رح» په بلنه و. دغه دين پالونکي، هيواد پالونکی، علم دوست، عادل او مهربان ملي مشر تر (۲٦) کالو وياړلو ملي خدمتونو وروسته په (۱۱۸٦) هـ، ق کال په کندهار کښې وفات او هوري ښخ شو. (۱)

## زرغونه انا:

دا نوميالۍ ميرمن په قوم الکوزی د لوی احمد شاه بابا مور ده د هغې د پيژندګلو لپاره همدا کافی ده چې پخپله غيږه کښې يې داسې توريالی او ننګيالی زوی روزلی دی، په وړکتوب کښې يې وپاله او په ځوانۍ کښې يې په سلطنتي کارونو کښې مشورې ورکولې. کله چې د ښار د امنيت په خاطر احمد شاه بابا تصميم ونيو چې د ښار ګرد چاپيره ديوالونه او خندوقونه جوړ کړي، زرغونې انا منع کړه او ورته يې وويل زويه! افغانان د خاورو ديوالونو ته پناه نه وړي، پدې ديوالو او خندقونو به يوازې زه او ته وژغورل شو. ستا هغه نور افغانان خويندې او ورونه چې له خندقونو بهر پاتې کيږي له تا څخه ساتنه نه غواړي؟ هغوی افغانان نه دي؟ او ته بايد دومره انتظار ونه باسې چې دښمنان له سرحدو راتېر شي او د ښار تر ديوالونو راوسيږي.

يو وخت چا په دروغو په کوم جنګ کښې د احمدشاه بابا د ماتې اوازه خپره کړه، زرغونه انا خبره شوه ويې ويل:

«برى او ماتې د تقدير په لاس ده، خو (احمد) ځان وژنی مګر ناکام نه راځی» که څه هم د زرغونې انا د مړينې کال نه دی معلوم خو تر (۱۱۷٤) هـ، ق کال پورې يې ژوند يقيني دی، قبر يې د قندهار د اوسني ښار شمال لويديځ لورې ته څلور پنځه کيلومتره وړاندې د (کوهک) په کلي کښې دی.

---

(۱) د حضرت محمد «ص» مبارکه خرقه د تيمور ګورګان له خوا په اتمه هـ پيړۍ کښې د عراق څخه سمرقند ته راوړل شوه او په ۱۱۲۸ هـ کښې د احمد شاه بابا پواسطه قندهار ته راوړل شوه.

## نایب امین الله خان لوگری:

د هیواد دغه نامتو بچی په (۱۱۹۷) هـ، ق کال د لوگر په برکي راجان کښې زیږیدلی دی، پلار یې میرزائی خان د تیمور شاه دُراني د واکمنی په وخت د کشمیر حاکم و. امین الله خان مروجه دیني علوم لوستي د لوړ عزم او همت خاوند و. د پلار له مړیني وروسته د بتخاک حاکم وټاکل شو. د حکومت له خوا د امین الدوله لقب ورکړ شو.

کله چې انگریزانو زموږ هیواد ونیو او شاه شجاع یې د کابل په تخت کښیناوه د هېواد په گوټ، گوټ په تیره بیا په کابل کښې ملي پاڅون پیل شو دغه پاڅون څلور ملي مشران درلودل چې یو یې امین الله خان لوگری و. په هغه پاڅون کښې چې د (۱۲۵۷) هـ، ق کال د نوامبر د دریمې نیټې په سهار عملاً په کابل کښې پیل شو، نایب امین الله خان پکی ډېر ستر نقش ترسره کړ.

کله چې د جنرال پالک په مشري انگریزی قواوې، د فتح جنگ په ملاتړ بیا کابل ته راغلی یوائینی شخص چې د پاڅون او مقاومت په ډگر کښې د مشر په توگه پاتې و، هغه امین الله خان لوگری و، د پروان د سیمې غازیان یې په ځان راټول کړل او د استالف په غونډیو کښې یې د یرغلگرو سخته مقابله وکړه او تر پایه یې له مقاومت څخه لاس وانخیست. له همدې کبله ټول انگریزي مورخینو دغه نومیالی غازي (خپل لومړی درجه نه پخلا کیدونکی دښمن) بللی دی. کله چې امیر دوست محمد خان د دویم ځل لپاره پاچا شو، دغه نومیالی غازی یې د انگریزانو په لمسون او یا خپلې واکمنی ته د احتمالي خطر له امله په بالاحصار کښې بندی کړ او په (۱۲۷٤) هـ، ق کال په بند کښې وفات شو.

## عایشه (دورانی) افغان:

عایشه افغان چې په عایشه (دراني) هم مشهوره ده د یعقوب علی خان (بارکزي) لور وه د تیمور شاه (دراني) په وخت کښې په کابل کښې اوسیدله د خپل وخت مروج دیني علوم، صرف و نحوه، د نظم او نثر ادبی کتابونه یې لوستي و، پوه عالمه، فاضله با تدبیره او د غوره اخلاقو خاونده میرمن وه، د دربار

تولو ارکانو او پخپله تیمور شاه (درانی) د هغې دېر درناوی کاوه، نوموړې ښه شاعره هم وه او په شل کلنۍ کښې یې د شعر په ویلو پیل وکړ د هغه د یو لوړني شعر یو بیت داسې و:

شفق را لاله گون دیدم نماز شام را گریون

مگر خورشید را کشته که دارد دامن پرخون

دغه نومیالۍ میرمن د اشعارو دیوان لري چې امیر عبدالرحمن خان د هغې د چاپولو حکم کړی و او د احمدجان خان (الکوزي) په اهتمام په (۱۳۰۵)هـ،ش د کابل په مطبعه کښې چاپ شو. په یوه روایت تر (۱۲۳۲) هـ،ق او په بل روایت تر (۱۲۳۵) هـ، ق پوري ژوندۍ وه.

## علامه محمود طرزی:

د غلام محمد خان طرزي زوی زمونږ د هیواد پیاوړی، عالم، لیکوال او ژورنالست و په (۱۲٤٤)هـ، ق کال په غزني کې د سلطان محمود غزنوي زیارت ته نږدې وزیږید، ځکه یې کورنۍ پرې د محمود نوم کیښود، پلار یې د کابل په کوچه، بارانه کې سکونت درلود او د سردار پاینده محمد خان له اولادې څخه و ښه شاعر او ادیب و او د عبدالرحمان خان دربار ته یې لاره درلوده، محمود (طرزي) د وخت مروجه علوم له خپلې کورنۍ او محمد اکرم هوتک څخه زده کړل، ژوره مطالعه به یې کوله. د عبدالرحمان له خوا د دوی کورنۍ تبعید شوه، دریږنیم کاله یې په کراچۍ کې تیر کړل بیا له خپلې کورنۍ سره شام او بغداد ته ولاړ او په ترکیه کښې یې له افغان سید جمالدین سره لیده وشول، په (۱۸۹۸). کال امیر عبدالرحمان د هغه کورنۍ ته بیرته د وطن د راتلو اجازه ورکړه، خو کله چې محمود طرزی وطن ته راغی، د حبیب الله خان د سلطنت دوره وه. دغه عالم چې له دیني او عصري علومو څخه پوره خبر و، د هیوادوالو خدمت ته یې ملا وتړله، امیر حبیب الله د ده دوه لوڼې خپلو زامنو امان الله خان او سردار عنایت الله خان ته واده کړې د سراج الاخبار جریده، یې د ملا عبدالروف په مدیریت منځ ته راوړه، د افغانستان د ژورنالیزم. او مطبوعاتو د پلار لقب یې

وګاته. د امان الله خان په دوره کښې کورنيو چارو وزير شو، بيا په فرانسه کې سفير، بيا خارجه وزير او بيا په کور کښېنول شو. د استعمار او وروسته پاتې والي ضد سړی و. د داخلي اړو دوړ پر وخت له کابل نه کندهار او بيا تر ايران پورې د امان الله خان د سفر ملګری و او وه مياشتې يې هلته تيرې کړې او بيا ترکيې ته ولاړ. ده زيات شمير اثار ليکلي دي چې د هغه وخت په مطبوعاتو کې چاپ شوي. د ځينو چاپ شويو او ناچاپو کتابونو نومونه يې دادي: ۱ - سياحت نامهء سعادت. ۲ - سياحت نامهء سه قطعهء روی زمين. ۳ - از دهن دهن سخني و از هر چمن سمني. ٤ - روضة حکم. ٥ - حقوق بين الدول. ٦ - سياحت نامهء منظوم افغانستان (منظومه جغرافيه). ۷ - سوانح زنده ګی. ۸ - پراګنده (د شعرونو مجموعه) ۹ - جزيره پنهان. ۱۰ - ادب در فن.

محمود «طرزي په (۱۹۳۳). کال د نوامبر په (۲۲) مه په استانبول کښې د ځيګر د سرطان په ناروغۍ وفات شو.

## افغان سيد جمال الدين:

د اسلامي نړۍ بې جوړې نوميالی او ستر مفکر علامه سيد جمال الدين افغان د (۱۲٥٤) هـ، ق، د شعبان په مياشت کښې د ګران هيواد د کونړ د ساداتو په يوه روحاني کورنۍ کښې زيږيدلی و. پلار يې سيد صفدر نوميده چې د امير دوست محمد خان د دربار له مخورو کسانو څخه ګڼل کيده، د نسب سلسله يې سيد علی ترميزی (پيربابا) ته رسيږي. له وړکتوب څخه يې د نبوغ او لوړ استعداد علامې ليدل کيدې، لومړی د کامې د شيرګړ په مدرسه کښې او بيا په کابل کښې له مشهورو عالمانو څخه يې سبقونه ولوستل، په ځوانۍ کښې هند ته ولاړ او هلته يې د ديني او عصري علومو زده کړې وکړې. سيد صاحب هند، حجاز، ايران، روسيې، ترکيې، مصر، لندن او فرانسې ته سفرونه وکړل په لندن کښې يې د (ضياء الخافقين) او په پاريس کښې يې د (عروة الوثقی) په نوم اخبارونه وچلول، دې به چې هر هيواد ته ولاړ د هغه ځای ژبه به يې ډيره ژر زده کوله او په علمي حلقو کښې به يې ډير چټک محبوبيت

پیداکاوه نو ځکه به ورځخه د وخت حاکمان په وېره کښې شول او د هغه ځای په پرېښودلو به یې مجبوراوه، امیر شیرعلي خان هم له همدې ویرې هغه د هیواد پرېښودولو ته مجبور کړ، دغه نومیالی د استعمار او بې عدالتۍ ضد دریځ درلود او د نړۍ د مسلمانانو د یووالي او خلاصون لیواله و. دغه نومیالی شخصیت په (۱۳۱٤) هـ، ق کال په ترکیه کښې د سرطان په ناروغۍ وفات شو او په (۱۳۲۳) هـ، ش کال کښې تابوت کابل ته واوړل شو او د کابل پوهنتون په ساحه کښې په ډېر درناوي خاوروته وسپارل شو.

## عبدالوکیل خان نورستانی:

عبدالوکیل خان نورستانی زموږ د هیواد د خپلواکۍ د لارې نومیالی اتل او غازي و چې په (۱۲۵٤)هـ، ق کال کښې د نورستان د کانتیوا په کلی کې زېږیدلی دی د امیر عبدالرحمن خان د واکمنۍ په وخت کې په اردو کښې شامل او توپچي منصبدار شو، د امیر حبیب الله خان په وخت کښې د غونډ مشری رتبې ته ورسید. په (۱۲۹۲)هـ، ش کال کښې د کندهار عسکري قوماندان شو، بیا د کابل کوتوالۍ عمومي قوماندان شو. په (۱۲۹۷) هـ، ل کال کښې د جنرالۍ رتبه ورکړه شوه اود کونړ ولایت د اسمار د سرحدي سیمې د قواو قوماندان مقرر شو. د هېواد خپلواکۍ په دریمه جګړه کښې یې د چترال په جبه کې د دښمن قواو ته سخته ماتې ورکړه او په شایې وتمبول. په (۱۲۹۹) هـ، ش کال په کابل کښې د لومړۍ فرقې قوماندان شو، په (۱۳۰٤) هجری لمریز کال د نایب سالارۍ رتبه ورکړه شوه او د بدخشان او قطغن د قواو قوماندان مقرر شو.

د کورني اړودوړ پای ته له رسیدو وروسته د نادرخان په واکمنۍ کښې بیرته په هماغه پخوانۍ رتبه په اردو کښې مقرر شو. نوموړی په (۱۳۰۹) هـ، ل کال د اسد د میاشتې په شلورمه مړ او د کابل د مرنجان په غونډۍ کښې خاوروته وسپارل شو.

دا چې د هېواد د خپلواکۍ په جنګ او د کورني اړو دوړ په غلي کولو، د داخلي امنیت په ټینګولو او اردو کښې د ښه خدمتونو ویاړ ور په برخه و نو د

کابل د همزنګ په ځلور لارې کښې دده په نوم یادګارې ځلی جوړ او په جلال آباد کښې یو ښوونځی هم د هغه په نوم ونومول شو.

## پروفیسر غلام محمد (میمنه ګی):

میمنه ګی زموږ د هیواد نومیالی رسام او انځور ګر به (۱۲۵۳) هـ، ق د فاریاب ولایت د میمنې په ښار کښې زیږیدلی پلار یې عبدالباقي خان د خپلې سیمې مشهور سړی و چې د سردار محمدایوب خان د ملګرتیا په تور په کابل کښې ووژل شو. میمنه ګي له رسامۍ سره مینه لرله او په (۱۳) کلنۍ کښې یې پرې پیل وکړ. دده یو رسم د امیر عبدالرحمن دربار ته ورسید چې د توجه وړ وګرځید او دربار ته وغوښتل شو، چې همدا رسم په دربار کښې وکاږي، همداسې وشول، امیر دی مجبور کړ، چې په منظمه توګه کار وکړي. میمنه ګي د دربار له مشهورو نقاشانو لکه میر حسام الدین، استاد محمد عظم خان، ملا بابا جان او یو تن انګلیس رسام جانګري سره یو ځای کار کاوه.

میمنه ګی سربیره پر دې چې پیاړی رسام و، تکړه عالم او د مشروطیت غوښتنی د غورځنګ غړی هم و. چې په دې وجه زنداني شوی هم و. امان الله خان د خپلې واکمنۍ په وخت کښې د لوړو زده کړو لپاره جرمني ته ولیږه، د برلین په ښار کښې یې زده کړه او عملي کارونه وکړل، د بیلابیلو هیوادونو د (۴۰۰) رسامانو او نقاشانو په مینځ کښې یې لومړی مقام وګاټه. د برلین اکادیمۍ له خوا د پروفیسور لقب او د تخصص ډیپلوم ورکول شو، کله چې هیواد ته راغی نو د رسامۍ، نقاشۍ، مجسمه سازۍ او لیتوګرافۍ په څانګو کښې یې ډیر شاګردان وروزل، د پوهنې لومړی درجه نشان او د ستور لومړی درجه نشان یې تر لاسه کړل.

پروفیسور میمنه ګی علم، فرهنګ او هنر ته د زیاتو خدمتونو له علمي او عملي هلو ځلو څخه وروسته په (۱۳۱٤) هـ، ش کال د عقرب په (۲۸) د (٦۲) کالو په عمر د وینې د فشار له امله په کابل کښې وفات او د عاشقانو او عارفانو په هدیره کښې خاورو ته وسپارل شو. د استاد د ښو خدمتونو په ویاړ د وخت

حکومت د (سازمان هنري غلام محمد میمنه ګي) په نوم یو هنري مرکز جوړ کړ چې لا تر اوسه یې نوم ژوندی دی.

## محمد ګل خان مومند:

اروابناد پوهاند صدیق الله «رښتین» لیکلي: «محمد ګل مومند» د محمد خورشید خان زوی، د مومن خان لمسی او د عبدالکریم خان کړوسی، په خټه دویزي حسن خیل (مومند) دی. په (۱۲۶۳) هـ، ش کال د کابل په اندرابیو کښې زیږیدلی، په حربي ښوونځی کښې یې زده کړه وکړه، د اردلیانو په غونډ کښې قوماندان شو بیا د حربي ښوونځي سر معلم و د سپه سالار صالح محمدخان مرستیال او بیا د شاهي ګارد قوماندان شو.

په ترکیه کښې د افغاني سفارت نظامي آتشه او د مجموعهء عسکري د مجلې د مدیریت دندې یې هم اجرا کړیدي، مومند صاحب په ننګرهار، پروان، پکتیا، بدخشان، قطغن، مزار شریف، فراه، کندهار کښې فرقو قوماندان او د تنظیمه رئیس په حیث وظیفې اجرا کړیدي د محمد هاشم خان د صدارت په وخت کښې د کورنیو چارو وزیر وتاکل شو، یو وخت د دولت وزیر هم و، د هیواد د خپلواکۍ په جنګ کښې یې برخه اخیستې او د کورني اړو دوړ یعنې سقاوي اغتشاش په خاموشه کولو او د امنیت په تامین کښې یې ستره ونډه اخستې ده. وزیر محمد ګل خان مومند به چې د هیواد په هر ولایت کښې دنده درلوده هلته یې ډیر زیات خونده ور عمراني او فرهنګي کارونه سرته رسول. د ځینو ولایاتو د ښارونو نقشې یې جوړې کړې، سړکونه او لارې یې اصلاح کړې، لوی، لوی مسجدونه یې جوړ کړل. د اقتصادي او تجارتي چارو په اصلاح به مشغول و، علم او معارف ته یې خاصه پاملرنه کوله، په هره سیمه کښې به یې د میشتو قومونو تر منځه د ورورولۍ مناسبات ټینګول، په تاجکو، ازبکو، ترکمنو او نورو قومونو کښې یې ډیر مخلص دوستان درلودل، د وزیر صاحب مورنۍ ژبه پښتو په ټام پښتون و، ده به ویل: «موږ هم باید خپل ملت ته پام وکړو او مورنۍ ژبه چې په ټلو ده ټینګه کړو، ښه یې وساتو، ویې پالو، ویې روزو، اخلاق، ادب

او رسومات چې سبب د امتیاز زموږ دي له خلل څخه وژغورو، ورک کړي مزیات ولټوو، مینده یې کړو، خپل غوره خویونه بدل نکړو، ځکه هر سړی لکه چې پخپل رنګ، اخلاق او خوی خاصیت له بل څخه بیلیږي، همدغسې هر ملت پخپل اخلاق، ادب، عادات، رسومات او خوی خاصیت له بل ملت څخه بیلیږي. مګر افسوس چې بې له محدودو کسانو دې خواته پام نه دی کړی، دا درست ځیزونه اخلاق، اداب، رسومات، خوی خصلت د پښتنو، پښتو کښې شامل دي. دا په اعتماد سره لیکلی شم چې پښتو په ټولو اوصافو او انسانیه او اسلامیه مزیاتو شامله ده.

پښتون پر کامل انسان او مکمل مسلمان باندې دلالت کوي، داسې لغات د هیڅ یو قام په قاموس کښې نشته، لکه چې پښتون یې لري».

مومند بابا له ناپوهۍ، بې علمۍ، وروسته پاتې والي او محتاجۍ څخه کرکه لرله. سناتور چکنوري د بابا په هکله وايي:

«وزیر صاحب محمد ګل خان څرنګ چې یو غښتلی جنرال و، ښه مدبر او سیاست مدار هم و، څومره چې په فوجي اُمورو کښې فعال او لایق افسر و، دغه راز په ملکي او ولسي کارونو کښې مهربان مشر او مردم داره هستي وه، د قوم او ټولنې په نبض پوه او د حکیم ملت مقام یې درلود.

ادیب، لیکوال، مصنف، فصیح او بلیغ مقرر او خوش صحبته انسان و». مرحوم رښتین به ورته د خپلې زمانې خوشحال ختک وایه.

مومند بابا ځینې پښتنانه شمالي ولایاتو ته د ناقیلینو په بڼه ولیږل او دا کار یې د یو عامه مصلحت په بنا وکړ، یعنې ده غوښتل چې له یوې خوا پښتانه د اقتصاد له پلوه د آرام ساه واخلي او له بله پلوه د تاجکو، ترکمنو او ازبکو له قومونو سره چې د هو ملک او ملت خلق دي، اشنا او مألوف شي او د وخت او شرایطو غوښتنې په صورت کښې په شریکه د وطن دفاع وکړي.

ده به ویل: «افغانستان د ټول افغانانو کور دی ټول یې باید وساتي» دده دا پیش بیني او حکیمانه تشخیص د وخت تیریدو بالکل ثابت کړ، سړی باید په

جرئت سره ووايي چې د مومند بابا تدبير كه پخپل وخت نه واى عملي شوى زموږ د گران وطن شمالى برخه به نن د وطن د دښمنانو او د هغوي د كورنيو لاس پوڅو پواسطه ټوټه، ټوټه شوى واى او خداى«ج» مكړه عملاً به د هيواد تجزيه رامنځ ته شوى واى، نو د هيواد د ملي وحدت په تأمين كښې محمد گل خان مومند ستره برخه اخستې ده او پدې وسيله د وطن په ټولو بچيانو د درناوي حق لري مومند بابا د تذلل او تكبر مخالف و او د وروروليء او برابرىء ارزومند و.

وزير صاحب د كندهار ادبي انجمن جوړ كړ چې وروسته دا انجمن كابل د ادبي انجمن سره يو ځاى شو او (١٣١٦) هـ، ش كال كښې پښتو ټولنه ترې جوړه شوه دده لوموړى علمي اثر (د پښتو سيند) په نوم په (١٣١٦) هـ، ش كال د كابل په عمومي چاپ خانه كښې چاپ شو او (٧٦٥) مخونه يې درلودل. دا قاموس په افغانستان كښې لوموړې چاپي قاموس گڼل كيږي. په پښتو او فارسي ليكل شوى دى. د (پښتو ليار) په نوم دده بل اثر په (٤٠٠) مخونو كښې د عبدالعظيم (صافى) په اهتمام په لاهور كښې چاپ شوى دى، دده بل خونده ور اثر (لنډه كى پښتو) د پښتو ټولنې لخوا چاپ شوى دى، ده ځينې نور آثار هم ليكلي لكه

١ - پښتو روزنه.

٢ - پښتو، پښتنواله.

٣ - د پښتو لويه نحوه (معانى او بيان).

٤ - پخلي كتاب چې (٤٠٠) مخونه لري.

د پښتو د ادب او په اخيري تحليل كښې زموږ د ملي فرهنگ د اسمان پنځه ستوري (علامه عبدالحى حبيبي، عبدالروف بينوا، گل پاچا الفت، قيام الدين خادم، او پوهاند صديق الله رښتين) يې د لاس نيالگي و، اوس نو هر څوك اندازه لگولى شي چې محمد گل خان مومند په افغاني ټولنه څومره حق لري او بايد څومره درناوى يې وشي دغه په هيواد او ولس مين مشر، پياوړى جنرال، سياست پوه، عالم او ليكوال د عفت خاوند په نفس حاكم شخصيت، رښتيني

افغان د (۱۳٤۳) هـ. ش کال د زمري د میاشتې په (۲۷) مه نېټه د سه شنبې په ورځ د سهار په اتو بجو د (۸۰) کالو په عمر د کابل د بریکوټ په یوه کرایي معمولي کور کښې وفات شو!!! همدا فقیرانه مرګ دده د هېواد پالنې او تقوی معیار او ستر ویاړ ګڼل کیدای شي.

د مومند بابا جنازه د ډیرو علاقمندانو له خوا بدرقه او د کابل په شهدای صالحین کښې خاورو ته وسپارل شوه.

دلته دا خبره ضرور یادول غواړي چې پدې کښې شک نشته چې پورتني ذکر شوي پنځه ستوري به د فطري او خدای ورکړي لوړ استعداد خاوندان هم وو لکه څرنګه چې د بجلۍ (بریښنا) په روغ لمپ یا ګروپ کښې د روښانه کیدو استعداد وي خو یو منبه یا سویچ یا تو کمه وهل ضرور غواړي او کله چې تو کمه (بټنه) ووهل شي ګروپ روښانه شي، نو دا به ومنو چې د پنځه واړه ستورو د لوړ فطري او خدای ورکړي استعداد تر څنګه د مومند بابا روزنه او پالنه هم پخپل وار د ذکر وړ ده. او تر کومه ځایه چې ددې ښاغلیو (پنځه ستورو) کارنامې دي، په جرأت سره ویلای شو چې زموږ د هېواد د تاریخ شمله به پرې تل هسکه وي. سړی چې د دوی د فکر ژور والی او د همت لوړ والي ته وګوري ویلای شي چې دا زموږ د هېواد افلاطونان، سقراطان او ارسطوګان وو.

## ښاغلی عبدالهادی داوی:

ښاغلی داوی په (۱۲۷۲) هـ. ش کال د کابل په باغ علي مردان کښې زیږیدلی و پلار یې مرحوم عبدالاحد خان د قندهار له مشهورو طبیبانو څخه و چې د امیر عبدالرحمن خان په فرمان کابل ته راغی او د دربار په طبیبانو کښې شامل شو. ښاغلي داوي خپلې زده کړې د حبیبې په ښوونځي کښې سرته ورسولې او لوړ تحصیلات یې د (تهیه) په نامه په هغه ټولګي کې سرته ورسول چې د امیر حبیب الله خان د مشر زوی سردار عنایت الله خان تر نظارت لاندې فعال و، د زده کړې په مهال د خپلو استادانو مولوی عبدالرب، مولوي محمد سرور واصف، مولوی محمد حسین خان د تدریساتو رئیس، ښاغلي (ندیم) او

ښاغلي افندي له افکارو څخه متاثر شوی و. ښاغلی داوی له پیاوړو مشرانو او سابقه دار لیکوالو څخه دی. په پښتو او دری ژبو یې زیات آثار چاپ شوي سربیره پر دې په اردو، عربي او ترکيي ژبو هم پوهیده او په خارجی هیوادونو کښې یې په دې ژبو د افغانستان لپاره لیکنی کولی.

ښاغلی داوی په (۱۲۹۰) هـ، ش کال د ښاغلی محمود طرزی په غوښتنه (د سراج الاخبار افغانیه) محرر وټاکل شو، په (۱۲۹۶) هـ، ش د شوربازار په سیمه کښې امیر حبیب الله خان د زیږیدنې جشن و چا په امیر د تفنگچی ډزو کړ د دې پیښې په متهمېنو کښې ښاغلي داوی هم د شاهی ارگ په زندان کښې اوه میاشتې قید شو. کله چې امیر حبیب الله لغمان کښې ووژل شو ښاغلی داوی هم له قیده خلاص شو او د امان افغان اخبار چلونکی مقرر شو په (۱۳۰۰) هـ، ش کال په خارجه وزارت کښې د هند او اروپا د څانگې مدیر مقرر شو. په (۱۳۰۲) هـ، ش کښې د فوق العاده سفیر په توگه بخارا ته ولیږل شو.

ښاغلی داوي له انگریزانو سره د خپلواکۍ د تړون د امضا کوونکو په ډله کښې شامل و په (۱۹۲۱) ع په لندن کښې لومړې وزیر مختار مقرر شو، په (۱۳۰۵) هـ، ش کال کښې کابل کښې د تجارت وزیر مقرر شو په سقاوی اړ دوړ کښې (۱۷) ورځې بندي و بیا هند ته لاړ لومړی په بمبی او بیا په کراچی کښې اوسیده او هلته یې د افغانستان د مصالحو لپاره د افغانستان په نوم یوه مجله چې په فارسي ژبه له لاهور څخه خپریدله چلوله او هم یې ډیرې مقالې د دې مطلب لپاره د ایران، هندوستان او انگلستان مطبوعاتو ته لیږلې. په (۱۳۰۸) هـ، ش د اعلیحضرت محمد نادرشاه له خوا په جرمني کښې وزیر مختار افغاني مقرر شو. په (۱۳۱۱) هـ، ش د انجمن ادبي افتخاري غړي وټاکل شو. په (۱۳۱۲) هـ، ش د علیحضرت محمد نادر شاه له مرگ نه وروسته بندی شو او په (۱۳۲۵) هـ، ش له زندان څخه آزاد شو. په (۱۳۲۷) هـ، ش د اعلیحضرت محمد ظاهرشاه د حضور سرمنشي مقرر شو. په (۱۳۲۸) هـ، ش په ملي شوری کښې د کابل دده سبز وکیل شو او بیا د ملي شوری رئیس انتخاب شو. په

(۱۳۳۲) هـ، ش په مصر کښې لوی سفیر او په (۱۳۳٤) هـ، ش کال په اندونزیا کښې افغاني وزیر مختار مقرر شو وروسته کابل ته راغی.

د ښاغلی داوی وروستی ماموریت د مشرانو د جرگې ریاست و. دده مشهور اثار دادی:

۱ - زما رسول پاک. ۲ - تجارت ما با سی، سی، سی، ر. ۳ - غیاصه. ٤ - لالی ریخته د علامه اقبال د اردو اشعارو فارسی ترجمه. ٥ - گلخانه یامجموعهٔ پریشان. ٦ - نغمات. ۷ - رجال وطن.

دغه پیاړی لیکوال او دیپلومات په (۱۳۵۸) هـ، ش کال په کابل کښې وفات او په شهدای صالحین کښې خاورو ته وسپارل شو.

## فرقه مشر سید حسن (حسن):

ښاغلی سید حسن خان (حسن) د مرحوم سید حسین پاچا زوی د ننگرهار له سیدانو څخه و، پلار یی په کابل، ننگرهار او نورو سیمو، په ځینو اسلامي هیوادونو کښې گرځندویه سړی و. ښاغلی عبدالروف (بینوا) د اوسني لیکوال په لومړی ټوک کښې لیکي:

«ښاغلی حسن چې د پښتو ژبې د اوسنیو شاعرانو په لومړی ډله کښې شمیرل کیږي په (۱۲۷۵) هـ، ش کال د لغمان په چارباغ کښې زیږیدلی دی او په (۱۳۱۹) هـ، ش کال په کابل کښې وفات شوی دی. د پښتو ددې نازکخیال او نقاد شاعر ابتدایي تعلیمات په خصوصي توگه و، چې بیا وروسته د کابل په عسکری ښوونځي کښې یې هم زده کړه کړی وه».

ښاغلی قیام الدین (خادم) دده د علمي تحصیل او فکري سبک په باب کښې داسی لیکی: «علاوه له مسلکي تعلیم څخه یې د فقهې، تفسیر او دیني علومو زده کړه هم کړیده، هر کله چې د ده مزاج طبعاً فلسفي راغلی دی نو پخپلو کاوشونو (سپړنو) او مطالعو سره یې په ډیرو مسایلو کښې تحقیقی (څیړنیز) معلومات لاس ته راوستی دي.

له ادبیاتو سره خاص شوق لری او پخپله په پښتو کښې روانه طبع او په

پارسي کښې هم د ښه قلم خاوند دی د حضرت بیدل طلسمي شعر او د حضرت اقبال فلسفي او عصري مذاق ته له نورو شعرو څخه زیات اهمیت ورکوي، که څه هم دده مسلک عسکریت دی، ولې بیا هم له شعر او ادب سره پوره علاقه لري، د پښتو د نهضت یو له کاملو طرفدارانو او حامیانو څخه دی».

ښاغلي خادم لیکي:

«دده ناسته ولاړه، مجلس او صحبت زښت بې تکلفه، ساده او خوږ دی، له دوستانو او آشنایانو سره په ډیر اخلاص، روڼ تندي او بې وتړه وضع سره مخامخ کیږي.»

د ښاغلي حسن رسمي ملازمت په عسکري ادارو کښې و چې د ژوند په ورستیو وختونو کښې یې د فرقه مشر (جنرال) په رتبه د حرب په وزارت (دفاع) په وزارت کښې د حربي رئیس په حیث کار کاوه.

دده اشعار زیات اصلاحي، تنقیدي او نهضتي روح لري او د وطن خواهی لوړ احساس پکې ځلیږي، کله کله په ډیرو سختو او درشتو الفاظو د قوم نا اهلان تنبه کوي، لکه چې وایی:

که په کف او په کالـر وي علامـه یـې
که په علم او په هنر وي د خـره وروریی
که په خوله وي قام پرست او وطن خواه یې
په عمل باندې کمبخته د پیغوریې

زه ددې کرښو لیکونکي لا د لیسې شاګرد وم چې د جنرال سید حسن خان د (زده کړه) تر عنوان لاندې شعر د پښتو په درسي کتاب کښې شاګردانو ډیر خوښاوه او په تیره بیا دا بیتونه خو به یې هر چا تکرارول:

رژیـلو لـه ویـرې نـه غــوریـږې ولــې
اندیښنـه پـریـږده غـوټـی توکـل زده کـړه
کـورنـی مرغـه په شـان به څـومره ژوند کـړې
بـشـاهـین په لـود آزاد الـوتـل زده کــړه
کــه د نــورو آســایـش او آرام غــوارې
کـهـوارې غـونډې د ځـان کـرېـدل زده کـړه

### مولانا قیام الدین خادم لیکي:

«دده مجلس کله د داسې فکاهیاتو صحنه وي چې مړی هم پکې په خندا راځي او کله د داسې عمیقې فلسفي مناظرې میدان شي چې د ذوق خاوندان پکې له خونده موتی، موتي غوښې اخلي.»

د اوسني لیکوال مولف لیکي چې: «ښاغلی حسن د داخلی انقلاب په ورځو کښې (سقاوی اغتشاش) د (کور غم) په نامه یو اخبار چلاوه».

د سید حسن (حسن) د یو ورارہ داکتر ضیاء الحق (مظهری) د معلوماتو له مخې نوموړی له وزیر محمد گل خان سره یو ځای د علی محمدخان له خوا پدې جرم د سراج العمارت په ته کاوي (تلخونه) کښې بندي شوي و چې هغه ته ولې د پاچا په عنوان وفاداري نه ښکاره کوي. د «زندانی خاطرات» لیکوال ښاغلی محمد هاشم «زمانی» د خپل کتاب په (۲۲۹) مخ کښې د «یوه هیواد پال هیوادوال «امانت» تر سرلیک لاندی لیکي سید حسن فرقه مشر د سید حسین پاچا زوی او په خوګیانیو کښې اوسیده د سقاوی اړ دوړ په خاموشه کولو او د هیواد د چارو په بیا سمبالولو کښې یې فعاله ونډه درلوده خو د وطن سره د بی دریغه مینی درلودلو او د خیانت سره د مبارزي کولو په وجه د وخت د حکومت له خوا په زندان کښې د سیاسی بندی په توګه واچول شو، او د «سلیم تاجک پرستار» د کیسی له مخی د زندان د سرطبیب داکتر عبدالرحیم له خوا د پیچکارۍ پواسطه ووژل شو او په شهادت ورسید.

### علامه استاد صلاح الدین «سلجوقی»:

استاد سلجوقي چې زموږ د هیواد ستر عالم، فیلسوف، نومیالی او پیاوړی ادیب او لیکوال و په (۱۲۵۷)هـ، ش کال د هرات په یوه عالمه کورنۍ کښې زیږیدلی. پلار یې مفتي سراج الدین نومیده. استاد چې د قوي حافظې او ښه ذکاوت خاوند و مروجه دیني، عصري او عقلي علوم ز ده کړی یې د خپل پلار، بیا ملا محمد عمر «سلجوقي» او د بالاحصار له مدرسې څخه تر لاسه کړی، د هرات په محکمه کښې مفتې، د پوهنې، اتفاق اسلام د جریدی مدیر، بیا د

ثروت د مجلې مدير، د اماني ليسې د ادبياتو او منطق استاد او په (۱۳۰۵) هـ. ش کښې د شاهي دارالتحرير منشي وټاکل شو. وروسته په ډهلي کښې افغاني جنرال قونسل، بيا په کابل کښې د مطبوعاتو مستقل رئيس بيا په ولسي جرگې کښې د هرات وکيل، بيا د دويم ځل لپاره د مطوعاتو مستقل رئيس او بيا په مصر کښې د افغانستان سفير وټاکل شو او ورپسې له دولتي دندې څخه متقاعد شو. استاد سلجوقي په دري، عربي او انگليسي ژبو ښه پوهيده، ښې ترجمې او ليکنې يې پرې کولای شوې. نوموړی د عالي افکارو، غوره اخلاقو، لوړ ذوق، پاکو جذباتو او احساساتو خاوندو، د هيواد د بچيانو په روزنه کښې يې ستره ونډه اخستې، نه هيريدونکې خدمتونه يې سرته رسولي، زيات آثارېې ليکلي يا يې ژباړلي دي چې ځينې يې دادي:

۱ - محمد در شيرخواره گي و خوردسالي. ۲ - نقد بيدل. ۳ - مقدمهء علوم اخلاق (۱ - ۲ ټوک). ٤ - علم اخلاق. ٥ - افکار شاعر. ٦ - جبيره. ۷ - نگاهې به زيبايي. ۸ - تجلی خدا در آفاق وانفس. د هيواد دا ستر عالم او مفکر د (۱۳٤۹) هـ.ش کال د جوزا په (۱٦) مه نيټه د زړه دريدو له امله وفات او د شهدای صالحين په هديره کښې خاوروته وسپارل شو.

## ملا فيض محمد کاتب:

ملا فيض محمد چې په (کاتب) هم مشهور و د محمد سعيد زوی په (۱۲۷۹) هـ. ق د غزني ولايت د قره باغ د زرد سنگ د کلي په يوه متوسطه بزگره کورنۍ کښې زيږيدلی و. هغه مروجه ديني علوم پخپله سيمه کښې زده کړل او د زياتو زده کړو لپاره يې قندهار، ايران او هند ته سفرونه وکړل کله چې له بهر نه هيواد ته راستون شو نو د يو تکړه عالم، مورخ، ليکوال او خطاط په توگه يې د هيواد والو خدمت ته ملا وتړله، د امير حبيب الله خان په دربار کښې لومړی کاتب او بيا د تاليف او دارلانشاء غړی او د دربار تاريخ ليکونکی شو. ډيرې مقالې او آثار يې وليکل د هغه څو چاپ شوي او ناچاپ آثار دادي:

۱ - (تحفت الحبيب دري ټوکه). ۲ - سراج التواريخ درې ټوکه. ۳ - سراج

التواریخ د دریم ټوک دویمه برخه. (٤ - د سراج التواریخ څلورم ټوک. ٥ - تذکرة الانقلاب. ٦ - امان الانشاء. ٧ - امان التواریخ پنځم ټوک. ٨ - تاریخ عصر امانیه. ٩ - فقرات شرعیه. ١٠ - تاریخ حکماء مقدمین. ١١ - فیضی از فیوضات.

بالآخره دغه نومیالی عالم د حبیب الله (کلکانی) د واکمنۍ په وخت کښې په (١٣٠٨) هـ، ش کال له یو هیت سره د هزاره جاتو د بهسودو سیمې ته ولیږل شو چې سقاو لپاره بیعت واخلي، دوی ناکام بیرته راوګرځیدل، د سقاو زوی پرې بدګمانه شو، بندي یې کړ او سخت وهل ټکول یې ورکړل چې په نتیجه کښې ناروغه او په (١٣٠٩) هـ، ش کال په کابل کښې وفات شو.

## استاد احمد علی کهزاد:

د هیواد نامتو پوه او تاریخ لیکونکی د (١٢٨٧) هـ، ش کال د ثور په اتمه په کابل کښې زیږیدلی. پلار یې میرزا محمد علي د خپل وخت نومیالی عالم او فاضل و. (حافیانو) اتحاد، جبل السراج او استقلال په ښوونځیو کښې یې زده کړې کړې وې او په (١٣٠٨) هـ، لمړیز کال کښې یې د استقلال له لیسی څخه بری لیک تر لاسه کړی دی.

د بری لیک تر لاسه کولو وروسته یې د هیواد د تاریخ او لرغونو آثارو د څیړنو د ستونزو ډک کار ته ملا وتړله. په (١٣١٢) هـ، لمړیز کال کښې په ایتالیا کښې د افغاني سفارت سرکاتب مقرر، بیا هیواد ته راغی او بندي شو، د افغانستان د پخواني تاریخ لومړی ټوک یې په زندان کښې ولیکه، له زندان څخه د خلاصیدو وروسته د تالیف او ترجمې په څانګه کښې مقرر شو، بیا د کابل موزیم رئیس شو. په (١٣٢١) هـ، لمړیز کال چې په کابل کښې د تاریخ انجمن جوړ شو استاد کهزاد یې رئیس وټاکل شو او نولس کاله یې دا د ستونزو ډکه دنده سرته ورسوله، معاصر تاریخ لیکنه د همده په دور کښې زموږ په هیواد کښې رواج او د وطن د تاریخ ډیر تیاره ګوټو نه روښانه شول. د (١٣٤٠ - ١٣٥٠) هـ، لمړیز کال پورې د پوهنې د وزارت مشاور و، په پښتو او دري سربیره

انګلیسي، فرانسوي او ایتالوي ژبو ښه پوهیده، له هر ډول تعصب څخه پاک عالم او مفکر شخصیت و، په ډیرو نړیوالو کنفرانسونو او سیمنارونو کښې یې دنده اخستې وه اود خپل هیواد د تاریخ او فرهنګ د معرفی لپاره یې ښې کچه خدمتونه کړیدي، بالآخره د (۱۳۶۲) هـ، لمریز کال د قوس د میاشتی په دویمه نیټه له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې او د شاه دوشمشیره د زیارت تر څنګه خاورته وسپارل شو.

## استاد خلیل الله «خلیلی»:

د افغانستان دا نومیالی شاعر او لیکوال د میرزا محمد حسین خان زوی د کابل د ښار په باغ جهان آرا سیمه کښې په (۱۹۰۹) م کال وزیږید په اوه کلنۍ کښې یې مور وفات شوې وه او په (۱۹۱۹) م یعنی لس کلنۍ کښې یې پلار د امان الله خان له خوا اعدام شو، مامایې عبدالرحمن خان (صافی) د هغه روزنه کوله، د کوهستان په لومړي ښوونځي کښې یې زده کړه وکړه، په (۱۹۲۵) م کال کښې د میربچه کوټ په لومړني ښوونځي کښې ښوونکی شو، بیا یې د مالې وزارت د محاسبې په څانګه کښې کار پیل کړ. په (۱۹۲۹) م کال د حبیب الله کلکانی خوجه عطامحمد د مزار شریف نایب الحکومه مقرر کړ، استاد خلیلی له هغه سره د مستوفي په توګه مزارشریف ته ولاړ، د نادرخان په وخت کښې د تحریراتو د لومړي، شعبی مدیر شو، بیا بندي او له عطا محمدخان سره کندهار ته تبعید شو. د شاه محمود خان د صدارت په وخت کښې وبخښل شو او د ادبیاتو د پوهنځي استاد مقرر شو. (۱۹٤۹) م د وزیرانو شورئ منشي مقرر شو په (۱۹۵۱) م د مطبوعاتو مستقل رئیس، بیا د پاچا مطبوعاتي مشاور شو، په (۱۹٦۵) م کال په اولسي جرګه کښې د جبل السراج د خلکو وکیل شو او بیا په جده کښې افغانی سفیر وټاکل شو، په (۱۹٦۹) م په بغداد کښې افغاني سفیر وټاکل شو چې په عین حال کښې یې په سوریه، بحرین، کویټ، اردن او ابو ظهبی کښې هم و افغانستان د حکومت نماینده ګي کوله.

سربیره پر دې استاد د ادبیاتو د پوهنځي د استادۍ، د آسیا او افریقا د

ليکوالو د نړيوالې ټولنې او د افغانستان د تاريخ د اکاډمۍ افتخاري غړيتوب هم درلود.

پياوړى عالم، شاعر، ليکوال، مورخ او د لوړ ادبي استعداد او ذوق خاوند و، د استاد د کتابونو او رسالو شمير (٥٤) ښودل شوى. بالآخره زموږ د خواږه وطن دا نوميالي عالم، پياوړى شاعر او ليکوال په (١٩٨٥) م د هجرت په چاپيريال کښې د (٨٢) کالو په عمر وفات او پيښور ښار د رحمن بابا په هديره کښې خاورته وسپارل شو.

## علامه پوهاند عبدالحی حبيبي:

د هيواد دا نوميالى عالم، مورخ او اديب د (١٢٩٨) هجري لمريز کال د پنجشنبى په ورځ د ثور په مياشت کښې د کندهار د باميزايى د محلې په يوه عالمه او فاضله کورنۍ کښې وزيږيد، دى د ملا عبدالحق اخوند زوى چې د عبدالرحيم اخوند زاده زوى او د علامه حبيب الله محقق کندهاري کړوسى و، د شالمار په لومړني ښوونځي کښې يې زده کړه وکړه. په خصوصي توګه يې فقه، تفسير، حديث، منطق، صرف، نحوه، فصاحت، بلاغت او د نړۍ د مشهورو پوهانو او اديبانو د نظم او نثر کتابونه ولوستل، په (١٣٠٤) هجرى، لمريز کال د (١٥) کلنۍ په عمر کښې يې د کندهار په يوه ښوونځي کښې معلمي پيل کړه، بيا د طلوع افغان د جريدې مرستيال او وروسته مدير شو.

په (١٣١٩) هجرى، شمسى کال د پښتو ټولنې مدير شو چې ورسره يې د مطبوعاتو د مستقل رياست د مرستيالۍ چارې هم پر مخ بيولى، په (١٣٢٠) هـ، ل کال کښې د پوهنې د وزارت مشاور شو، په (١٣٢٣) هـ، ل کال د ادبياتو پوهنځي له تاسيس سره جوخت د هغې پوهنځي رئيس او د ادبياتو د تاريخ استاد مقرر شو په (١٣٢٥) هـ، ل کال کښې په چمن کښې وکيل التجار افغاني مقرر شو، په (١٣٢٧) هـ، ل کال بيرته هيواد ته راغى او په ولسي جرګه کښې د کندهار د خلکو وکيل وټاکل شو. په (١٣٣٠) هـ، ل کال کښې جلا وطن او لس کاله د وطن نه د باندې و په (١٣٤٠) هـ، ل کال کښې بيرته هيواد ته راغى د ادبياتو د پوهنځي استاد او په (١٣٤٤) هـ، ش کال کښې خپله د پوهاندى رتبه تر لاسه کړه.

په (۱۳٤٥) هـ. لمریز کال کښې د افغانستان د تاریخ ټولنې مشراو په (۱۳۵۱) هـ. ش کال د صدراعظم د مشاور په توګه وټاکل شو. ده (٥٦) کاله د هېواد په فرهنګي او ادبی ادارو کښې کار کړي دی او (۱۱۵) کتابونه یې لیکلی دی، بې مثله او بې شمیره علمي او فرهنګي خدمتونه یې هیواد ته کړیدي، ډیر عالمان او دانشمندان یې روزلي دي.

دغه پیاوړي عالم، مورخ او منلي ادیب د علم او فرهنګ رښتنی خدمتګار د (۱۳٦۳) هـ. لمریز کال د ثور د میاشتې په شلمه نیټه وفات او په شهدای صالحین کښې خاورو ته وسپارل شو.

## ښاغلی عبدالرحمن پژواک:

ښاغلی عبدالرحمن پژواک د قاضي عطاء الله خان زوی په (۱۳۳٤) هـ. ق کال د غزنی په ښار کښې زیږیدلی دی. پژواک څه زده کړې د سره رود د باغوانیو په کلي کښې له خپل پلار څخه وکړې او بیا د (مطلع دانش) په ښوونځي کښې چې د سره رود په بالاباغ کښې و شامل شو، بیاد اندارابیو د ښوونځي په څلورم ټولګي کښې او وروسته د (حبیبی) په عالي ښونځي کښې چې د کابل په شهرارا کښې و شامل شو، تر دولسم ټولګي وروسته د طب په فاکولته کښې شامل شو خو د ذوق د نشتوالي له کبله دوه کاله وروسته له هغې فاکولتې څخه وایستل شو همدارنګه پلار یې چې د اعیانو د مجلس رئیس و، مړ شو او د کورنیو مشکلاتو له کبله دې مجبور شو چې تحصیل پریږدي، نو د کابل په (ادبي انجمن) کښې د انګلیسي ژبې ترجمان وټاکل شو، بیا د مطبوعاتو په مستقل ریاست کښې د دویمې څانګې مدیر مقرر شو، او څه وخت وروسته د اصلاح د ورځپاڼې چلوونکی شو او د باختر آژانس د لوی مدیریت چارې یې هم پرمخ بیولې، وروسته د پښتو ټولنې لوی مدیر او بیا د مطبوعات د ریاست د نشراتو لوی مدیر مقررشو، وروسته په لندن کښې مطبوعاتی سکرتر، په (۱۹٤۸) کښې په واشنګټن کښې د افغانی سفارت کلتوری آتشه، بیا سیاسی لوی مدیر او وروسته په (۱۹۵۸) کال کښې په ملګرو ملتو کښې د افغانستان دایمی استازی وټاکل شو. ښاغلی پژواک د ملګرو ملتونو د عمومی اسامبلی د (۲۱) می دوری د ریاست ویاړ حاصل کړ.

وروسته یې په بن، ډهلی او لندن کښې د خپل هیواد د لوی سفیر په توګه دنده

اجراکړه د ثور د کودتا څخه وروسته وطن ته راغی او پخپل کور کښې نظر بند و. کله چې د وطن پرېښودو ته مجبور شو نو هند ته ولاړ خو دا چې د کابل د رژیم سره مخالف و له هند څخه اخراج شو او المان ته ولاړ پاکستان ته راوغوښتل شو چې د کابل د رژیم سره په مخالفت کښې برخه واخلي څه وخت وروسته له دې ځایه هم اخراج شو امریکا ته ولاړ او هلته یې د افغانستان د خلاصون لپاره هلې ځلې کولې، په (۱۹۸۳) م کښې په یوه کنفرانس کښې د ګډون په خاطر پېښور ته راغی او تر مرګه همدلته پاتې شو. په ملګرو ملتونو کښې یې د ډیرو کمیټو، هیئتونو او کمیسونونو ریاست کړی دی، په ډېرو مواردو کښې دده نظریات او طرحې د ټولو له خوا منل شوې د بشری حقوقو په هکله یې ډېر کارونه وکړل او حتی دده ځینې نظریات د هغې ټولنې د اسنادو او پرنسیبونو په توګه ومنل شول. پژواک د مړاو، وفا، ارمانجن، پژمان، او پژواک په نومونو لیکنې او خپروني کړی دي. په پښتو، دری او انګریزی ژبو یې ډیر آثار لیکلی دي چې ځینې یې دادی:

۱ - کلـــیـمـه داره روپۍ. ۲ - اواره. ۳ - انګور تاک. ٤ - آریانا.
٥ - افـغـانـستان بـاستان. ٦ - پـښـتـونـسـتـان. ۷ - د پښتونستان ورځ.
۸ - د پښتونستان مسئله. ۹ - عروج بارکزایها. ۱۰ - افسانه های مردم. ۱۱
- پیشوا. ۱۲ - باغبان. ۱۳ - حدیث خون. ۱٤ - میهن من.
۱٥ - مذاکرات ژنېو او داسې نور.

دغه پیاوړی لیکوال او نابغه دیپلومات د (۱۳۷٤) هـ. ش کال د جوزا په (۸) مه د پنج شنبې په ورځ د (۷٤) کالو په عمر په پېښاور کښې مړ شو او د جوزا په نهمه د سرخورد په باغوانېو کښې په پلرنی هدیره کښې ښخ شو. د پژواک د مړینې خبر ځ.م. د (٤۹) تمې دوری په (۱۰٤) لمبر غونډه کښې د ورځې په لس بجو هغې غونډې ته په خواشینې سره ابلاغ شو ټول نماینده ګان د پژواک د درناوی لپاره ودریدل او یوه دقیقه چپ پاتې شول.

*(زه پژواک یمه په پیچومو کښې لوی شوی*
*دا چې چپ یم دلته غر او ګړنګ نشته)*

# څوارلسم څپرکی

# د کابل ژوبڼ او د مارکوپولو نسل

په کابل کښې د کابل سیند په غاړه د بریکوت په سیمه کښې یو ښکلی ژوبڼ (باغ وحش) موجود وچې د کابل پوهنتون د ساینس (علومو پوهنځي) سره یې رابطه وه یا یې په هغه پوهنځي اړه درلوده.

تقریباً هر ډول الوتونکي، خزندې او ژوي پکې اوسیدل، یا لږ تر لږه هغه څه پکې وو چې زموږ په سیمه او منطقه کښې پیدا کیدل، لوی او واړه به سیل ته ورتلل د ښوونځیو د شاگردانو د ټکټ بیه نیمه وه، کله به چې سړی ژوبڼ ته ننوت هره برخه یې د توجه وړ وه خو ماشومان به زیات د فیل، پړانگ، زمري، بیزوگانو هوسیو، مارانو، بازانو او کوترو په شاوخوا راټول و. صحرایی چرگان، طاووس او زانې هم د هغوی د توجه وړ و.

ماشومانو به د ژوبڼ ځینو ژویو ته د هغوی د خوښې ساتلو او له دوې سره د روږدي کیدو په خاطر گازرې، ممیز، جنغوزي، غوزان او ځینې نور شیان راوړل او هغوي ته به یې د پنجرو دننه ورغورزول خو د جنگ لیونیانو هماغو پنجرو ته بمونه وغورځول او هماغه ژوي یې تباه کړل چې لوی او وړو د هغوی له لیدو سره مینه درلوده او د کابل د ښکلي ښار یوه څنده یې ډیره ښکلې کړې وه. د ژوبڼ ټولو ژویو د منظم پروگرام او تابلو له مخې خواړه خوړل او د ناروغتیا په وخت کښې د بیطارانو له خوا تداوی کیدل د بیالوژۍ لوستونکو او علاقمندانو هلته پوره څیړنه او مطالعه کولای شوه، په پاکستان کښې ژوبڼ ته چړیا گهر وایي.

همداسې چې زموږ هیواد ډول، ډول اقلیمونه لري ډول، ډول ژوي او

الوتونکي پکې ژوند کوي چې د ژوبو له جملې څخه يې د مارکوپولو هوسۍ نړيوال شهرت لري. دا ښکلې هوسۍ چې غټې، ښکلې تورې سترګې او تاو راتاو اوږده ښکرونه يې چې کله، کله يې اوږدوالی (۱,۶۰) متره پورې رسيږي زيات زړه راښکوونکي دي. داسې وايي چې دا ښکلې او چټکې هوسۍ ډېرې غښتلې دي او د هر يوې جګوالي او غټوالی د ښه قوي چاري پسه پشان وي او يوازې په افغاني او تاجيکي پامير کښې له درې زره مترو څخه په زيات لوړوالي کښې ژوند کوي.

په (۱۳۵۰) هـ، ش کال کښې مې د هيواد دوره څپاڼې لپاره په کابل کښې د ګرځندوی له رياست سره پدې هکله يوه مرکه کړې وه، داسې معلومات يې راکړي وو «د مارکوپولو هوسۍ د نړۍ د سترو ميليونرو سيلانيانو پاملرنه ځانته را اړولې ده چې زيات يې امريکايان دي. دا سيلانيان د مارکوپولو هوسۍ د ښکار لپاره د ګرځندوی رياست ته پروپوزل يا وړانديز ورکوي له موافقې څخه وروسته ميليونر سيلاني زموږ هيواد ته راځي او په کابل کښې د کومې شپې ورځې له تيرولو څخه وروسته فيض آباد او بيا د پامير خوا ته روانيږي. چې په سفر کښې ډريور، آشپز، عکاس، ګايډ، ښکاري او ځينې نور کسان د سيلاني ملګرتيا کوي چې د دې ټول افغاني پرسونل مصارف هم د سيلاني په غاړه وي. د پامير له بيخ څخه بيا تر ښکار ځای پورې د سامانونو وړل د پاميري وطنوالو په غژګاونو باندې د کرايې په بدل کښې سرته رسيږي، يوه ښکاري به د دوه زره ډالرو ټکس به مقابل کښې اجازه درلوده چې يوازې د مارکوپولو يو نر حيوان ښکار کړي، د دوهم حيوان د وژل کيدو يا د مارکوپولو د ښځينه حيوان د ويشتل کيدو په صورت کښې ورڅخه جريمه اخستل کيده. ددې لپاره چې بې احتياطې ونکړي او ددې حيوان نسل له پامير څخه ورک نشي، هر کال به د ګرځندوی رياست يوازې د لس دولس حيواناتو د ښکار اجازه ورکوله او بس، ددې هوسيو نوم د هماغه مشهور سيلاني نوم سره تړاو لري چا چې له چين څخه د وريښمو په لار اروپا ته سفر کاو.

خو په ډېر تاسف نن سبا داسې خبرونه اوریدل کیږي چې زمونږ په هیواد کښې د جگړې د دوام او وژونکو او تباه کونکو وسلو د خپریدو له امله یا خو د مارکوپولو هوسۍ په زیات اندازه په غیر مسولانه ډول تباه شوي او یا یې د جنگ سالارانو له رحم او عاطفې څخه د نهیلۍ په خاطر کوم بل هیواد ته کډه وړې ده او د پامیر څوکې ترې د خالي کیدو ساړه اسویلي وباسي.

د یادونې وړ ده چې د مارکوپولو په څیر د یو ډول نادره او کم یا به باز چې د څرخ په نوم یادیږي نسل ورکیدو ویره هم پیدا شوې ده دا هماغه مرغه دی چې د څو کلو راديخوا يې په افغانستان کې نیول شروع شوي او هلته ترېو لک کالدارو په پیښور کې تر اووه (۷ - ۸) لکو کالدارو ، کراچی کښې تر شل لکو او په اماراتو او ځینې نورو عربي شتمنو هیوادونو کښې تر درې، څلور سوه لکو کالدارو پورې خرڅ شوي دي، نه پوهیږم چې ددې ملي شتمنیو د ساتلو ذمه واري به د چا په غاړه وي او د هیواد راتلونکي نسل به د چا په تندی د غفلت او مسئولیت تاپه وهي.

په هر صورت بهرنیو سیلانیانو به د مارکوپولو حیوان له ښکار وروسته صرف د حیوان پوستکی او ښکرونه له ځانه سره وړل هغه به یې له پنبې، او اسفنج او یا کوم بل شي څخه ډکاوه او لکه د ژوندي حیوان په څېر به یې پخپل شخصی موزیم (تږوپي هوس) کښې ودراوه او خپل دوستان به یې د هغې ننداري ته رابلل.

# پنځلسم څپرکی

## د مخدره موادو بلا او افغانان

اصلاً خو د مخدره موادو د استعمال تاریخ د بشریت له تاریخ سره سم موازی راروان دی. د تاریخ په اوږدو کښې ډیر داسې موارد لیدل شوی دي چې کله د فرحت او خوشحالۍ لپاره او کله د درد او رنځ د تسکین په غرض له نشه یې موادو څخه انسانانو کار اخستی دی بې له دې چې په دې وپوهیږي چې دغه خوښی کاذبه او ژر تیریدونکې ده یا هم دغه تسکین غولوونکي، بلا زیږوونکي او نا سالم دی. په هر صورت زموږ د بحث موضوع پر مخدره موادو باندې د روږدي کیدو بلا او له هغې څخه د خلاصون لارې چارې دي.

### ۱ :- اعتیاد (روږدي کیدل) څه ته وایې:

د عادت پر مخ تللي حالت ته اعتیاد وایې چې معتاد د جسمي او رواني تړاو یا نیاز مندۍ له امله له مخدره موادو څخه کار اخلي او دا حالت له عادت سره فرق او توپیر لري، ځکه اعراض یې یو له بل سره متفاوت دي.

### ۲ : - د اعتیاد عوامل:

که څه هم دا عوامل د زمان او مکان له مخې او د اشخاصو د عمر او سن له پلوه توپیر لری خو زموږ د افغانی ټولنې په اشخاصو کښې تقریباً د اعتیاد لاندې عوامل په ګوته کیدای شي:

- ماشومانو ته د مور او پلار نه پاملرنه.
- پر نشه یې موادو د ماشومانو او تنکیو ځوانانو لاس بری.
- د نا اهله دوستانو لرل.

- بې ځايه شوق او کاکه ګي.
- سيالي او ځان لوړ ښودل.
- د پوهې او معلوماتو کموالی.
- شخصي، کورنۍ او د چاپيريال ستونزې.
- په کورنۍ کښې د روږدو مشرانو شتوالی.
- په ناروغتياو کښې بيځايه پيرزوينې.

## ۳ :- له اعتياد څخه پيدا شوی ستونزې:

### الف - روغتيايي ستونزې:

په مخدره موادو روږديدل عقلي او روحی ستونزې او له بله پلوه جسمي او فزيکي ستونزې منځ ته راوړي. مخدره مواد که د انشقاق، خوړلو يا ذرق کولو په هرې طريقې واخستل شي، له يوی خوا د اعصابو مرکز (S,N,S) باندې اغيز کوي او ذهني فعاليت ګډوډ وی او د قضاوت او سم تشخيص مميزه قوه شنډوي له بله پلوه د بدن د جهازونو په وظيفو کښې ځوړتيا منځ ته راځي او د هغوی وظيفې اخلاليږي، چې په نتيجه کښې يې د بدن ټول غړي تاواني کيږي او په تيره هغه جهاز چې د مخدره موادو د تيريدو او ننوتو لار يا کانال تشکيلوي. په ډول، ډول ناروغيو اخته کيږي او له هغې جملې څخه د سرطان (کينسر) انسان وژونکې ناروغۍ ډيره د تشويش وړ ده.

### ب - اقتصادي ستونزې:

څرنګه چې روږدي له يوې خوا له يوې ورځې څخه بلې ورځې ته د کار او سالم فعاليت توان له لاسه ورکوي په دې کښې هيڅ شک نشته چې د هغوی ګټه وټه او عايد کميږي.

له بله پلوه روږدی مخصوصاً که پر چرسو، شرابو، هيروينو، ماندرکسو، (L,S,D) او داسې نورو باندې اخته وي، نو مجبور دی چې د خپل ورځني عائيد يوه برخه د دې شيانو په رانيولو ولګوي، چې په نتيجه کښې يې کورنۍ متضرره کيږي. که د يوه هيواد په کچ فکر وکړو چې شل لکه معتاد ښ ولري او هر معتاد

د ورځې فرضاً شل روپۍ په نشه یی توکو ولګوي نو سړی اټکل کولای شي چې د ورځې، اونۍ، میاشت، او بالآخره د یو کال په بهیر کښې د هیواد اقتصاد ته څومره تاوان رسیدلای شي. له بده مرغه د پیښور د نجات سنتر د معلوماتو له مخې د افغان مهاجرینو په منځ کښې د روږدیدا کچ ورځ په ورځ لوړیږي. هغه سروې چې د خراسان کمیپ کښې د (۲۰۰۰) م کال په جریان کښې وشوه دا حقیقت یې په ډاګه کړ.

ج - کورنی ستونزې:

عملاً لیدل شوی دي چې معتادین په کورنۍ کښې جاړو جنجال منځ ته راوړي، د کورنۍ د غړیو په مقابل کښې د مسئولیت احساس نه کوي، د کورنۍ پت او عزت ته تاوان رسوي او حتی له خپلې کورنۍ څخه غلاوې کوي، ګټه یې درک نلري او بلآخره د کورنۍ د اوږو بار شي.

د - ټولنیزې ستونزې:

روږدي کسان په ټولنیزو فعالیتونو کښې د ګډون او ونډې اخستلو وړتیا له لاسه ورکوي، بل ته یې کومک نه رسیږي او تل د نورو په تمه وي، ورو، ورو مفت خور او تیار خور شي، ډول، ډول بیلاریو ته لاس واچوي، ټولنیز ارزښتونه او بنستونه تر پښو لاندې کوي او بلآخره پر جرم او جنایت باندې لاس پورې کوي چې په نتیجه کښې یې په کور، کلي، کوڅه او بازار، حتی محکمه او زندان کښې د ټولنې د اوږو بار شي.

هـ - د مخدره موادو ډولونه:

تر اوسه په نړۍ کښې له سلو ډولو څخه زیات طبعي او صنعي مخدره مواد پیژندل شوي دي چې له هغوی څخه یو شمیر یې په طبابت کښې تر قانوني طبی استعمال لاندې راغلي دي، نور ټول یې غیر مجاز او مضر دي.

هغه چې د طبابت د جواز په غوښتنه ترې کار اخستل کیږي ځینې منومی (خوبونکی) منبهی (خبروونکی) دواګانې دي.

طبیبان وایي چې حتی چای، قهوه او ککو چې مجاز او عادي توکي دي خو څه

ناځه مخدره تاثیر لري او د وخت په تیریدو ځینې فیزیولوژکي تکلیفونه منځ ته راوړي.

## و - مخدره مواد د اسلام له نظره:

هغه شی چې تاوان یې له ګټې څخه ډیر وي حرام دی په یو حدیث شریف کښې راغلی دی: «الخمر ما خمر عقلاً» خمر هغه شی دی چې عقل تخدیر کړی چې له أم سلمی رضی عنها څخه روایت دی چې: «نهی عن کل مسکر و کل مفتر» منع وکړه پیغمبر د هر ډول مسکر او مفتر څخه. مفتر هر هغه شی دی چې سستی منځته راوړي په یوه بل حدیث شریف کښې راغلی دی. «ان الله اذا حرم شیأ حرم ثمنه» همدا راز په یو بل حدیث شریف کښې لولو چې: (کل مسکر خمر و کل خمر حرام) لنډه دا چې هر هغه شي چې مُضر او کورنی یا ټولنې ته ضرر ترې متصور وي د اسلام مقدس دین پرې د بطلان کرښه راښکلې ده، ځکه دا دین د بشریت د فلاح خیر او نجات او نیکمرغی ضمانت کوي.

## ز - مخدره مواد د نړیوال پرابلم په حیث:

د ورستیو احصایو له مخې په نړۍ کښې تقریباً (۱۹۰) میلیونه انسانان د اعتیاد په مونګولو کښې ګیر دي او دا د نړۍ ټولو اوسیدونکو ته د غور او فکر خبره ده او باید په دې فاجعه دردمند شی، حضرت سعدی «رح» څه ښه وایي:

*بني ادم اعضای یکدیگر اند — که در آفرینش ز یك جوهر اند*

*چو عضوی به درد آورد روزګار — دیګر عضوء ها را نماند قرار*

کیدای شي چې دا معتادین هم په مستقیم یا غیر مستقیم ډول د نورو انسانانو او حتی زموږ په ژوند او نړۍ منفي اغیزې وکړي. که د اعتیاد له بلا څخه خلاص یا وژغورل شي. کیدای شي چې نورو انسانانو او هم نوعو ته یې ګټې ورسیږي او حتی کیدای شي چې په کفر کښې واقع وي او مسلمان شي.

په خواشینۍ سره باید ووایو چې په (۱۳۷۸) هـ، ش کال کښې په افغانستان کښې (۴۵۰۰) ټنه تریاک تولید شول چې د نړۍ د تاریاکو ۷۵٪ تشکیلوی

که څه هم د کوکنارو کرنه په افغانستان کښې ځینې موجه دلایل لري چې نړیوال او د خیر ښیګنې موسسې باید هغې ته پاملرنه وکړي او هغه د افغانانو له ستونزو او فقر سره مستقیماً اړیکې لري او د هغې په له منځه وړلو کښې نړیوال اخلاقي او انساني مسئولیت لري.

خو د اسلام مبین دین د ارشاد له مخې چې فرمائي: «خیرالناس من ینفع الناس» ددی هیله لرو چې مور د افغانانو او مسلمانانو په صفت ددې ویاړ جوګه وګرځو چې یو وخت به افغانستان کښې د چرسو او کوکنارو بوټي او کروندې بالکل له مینځه یوسو او په خیرالناس کښې ځانونه داخل کړو.

## ح – د مخدره موادو په ضد مبارزه:

که څه هم نن سبا د مخدره موادو په ضد مبارزه نړیوالې هڅې او ازمیېلي شوی تکتیکونه غواړي، ځکه هغه څوک چې ددې موادو تجارت او ترانسپورت کوي ډیر زیرک او ماهر کسان وي د مرحوم محمد داود خان په دور کښې می د استادی د مقدسې دندې تر څنګ د پولیس «د تولنې خدمتګار» مجلې د مرستیالی ویاړ هم درلود نو مونږ به په هره ګنه کښې تر دې عنوان لاندی چې (با تکتیک های متنوع قاچاق اشنا شوید) یعنی خطاب مسلکي پرسونل ته و چې د انسداد قاچاق په ځانګو کښې یې کار کاوه. هغه تکتیکونه نشر ته سپارل چې کورینو یا بهرینو قاچاق وړونکو به په کار اچول، چې په دې لړ کښې د (۱۳۵٦) هـ، ش کال تر پایه پورې کابو (۵۲) دوله هغه تکتیکونه پیژندل شوي وو، چې قاچاق وړونکو به د مخدره موادو د قاچاق لپاره ترې استفاده کوله، نو ښکاره خبره ده چې دا تکتیکونه به اوس له سلو څخه هم اوښتي وي. په هر صورت له مخدره موادو سره مبارزه په دوه ډګرنو کښې تنظیم کیدای شي.

۱ – د تولید، تورید، ترانسپورت او قاچاق په برخه کښې.

۲ – د روږدیدا په برخه کښې.

چې په لومړۍ برخه کښې هره تولنه په تیره بیا زمونږ وران ویجاړ وطن ملي

مسلکي کدرونواو نړيوالو تخنيکي مرستو ته ضرورت لري چې د هغې تامين او تضمين د دولت عاجله (بيړنۍ) او فوري دنده تشکيلوي.

او په دويمه برخه کښې هغه هم زموږ په اسلامي او افغاني ټولنه کښې خو زما په اند ديني عالمان، ښوونکي او استادان زموږ د ټولنې داسې قشر تشکيلوي چې له يوې خوا د شاګردانو او له بلې خوا د ټولنې د مختلفو ګروپونو سره په تماس کښې دي نو په وقايوي او مجادلوي دواړو برخو کښې ډير موثر کردار ادا کولای شي، خو پدې شرط چې له يوې خوا استاد پخپله نمونه وي او له بلې خوا يې معلومات غني وي او په زړه سوی کار وکړي. څومره به ښه وي چې زموږ په مذهبي ټولنه کښې د اعتياد له توري بلا سره د مبارزې په ډګر کښې د جيدو او فهيمو علمای کرامو خاصه توجه او مرسته وغوښتل شي.

تکړه او پياړي استادان او ښوونکي په حقيقت کښې هغه پيژندل شوی سوشل ورکران دي چې د هر چا په نسبت ښه درک او تشخيص کولای شي، تکړه او پياوړي استادان معتادين ښه پيژندلای شي او په اعتماد يې د ژغورنې مرکزونو ته معرفي کولای شي، همدا راز د هغو معتادينو په برخه کښې چې له زهرو څخه ژغورل شوي دي، يعنې د ژغورنې به مرکزونو کښې تداوي او د پرهيز مرحلې يې تيرې کړي وي، د بعدي تعقيب او کنترول ښه چانس او امکان لري.

په خاصه توګه ځوانانو او تنکيو ځوانانو ته له اعتياد څخه نجات ورکول ډير عاجل او د پوره پاملرنې وړ کار دی.

ځکه د افغانستان په داخل او په تيره بيا د هجرت په محيط کښې په ګاونډيو ملکونو کښې هغه ځوانان چې له بيکارۍ سره مخ دي په هيروينو يې د اعتياد شمير ورځ په ورځ زياتيږي.

# شپاړسم څپرکی

# دارالتادیب او تنکي ځوانان

د (۱۳۷۸) لمریز کال د چونګاښ په میاشت کښې د افغانستان اسلامي امارت د عدل وزارت د دارالتادیب د بیا جوړولو اعلان وکړ او زیاته یې کړه چې د هیواد په پنځو ولایتونو (ننګرهار، کابل، کندوز، کندهار او هرات) کښې به پنځه دارالتادیبونه جوړ شي. دا خبره ډیره د توجه وړ ده او ستر حقوقي ارزښت لري، ځکه دارالتادیب په عدم موجودیت کښې د حقوقو د حراست ارګانونه مجبور دي چې هغه منحرفین (صغیر او مراهق) چې د امن او نظم په ګډوډولو تورن او بیا محکوم شي. زندانونو ته واستوي چې دا اجرات د صغیرانو او مراهیقینو په هکله تیری ګڼل کیږي او د ماشومانو او کورنیو له حقوقو سره په ټکر کښې واقع کیږي.

ځکه ټول پوهیږو له کومې ورځې څخه راپدیخوا چې په نړۍ کښې زندانونه منځ ته راغلي دي، هدف یې دا و چې مجرم د یوې خوا د آزادۍ د نعمت په قدر پوه شي او له بلې خوا تر داسې تربیې لاندې ونیول شي چې د خپل ناروا عمل په کولو پښېمانه شي او د حبس موده له تیرولو څخه وروسته ټولنې ته د یو صالح او نافع غړي په توګه وړاندې شي چې د ګټور او شرافتمند ژوند د تیرولو جوګه شي، خو له بده مرغه د نړۍ په اکثرو زندانونو کښې دې اصل ته توجه نه کیږي.

په تیره بیا په وروسته پاتې هیوادونو کښې، ځکه پدې هیوادونو کښې ډیر لیدل

شوي دي چې د يوه جرم له کبله مجرم زندان ته وليږل شي، خو کله يې چې د حبس موده پوره شي او له زندان څخه راووزي نو له درې څلور ډوله نورو جرمونو سره آشنا شوی او نوي جرمي تکتيکونه يې زده کړي وي نو څومره د تشويش وړ ده که صغيران او مراهقين د جزا د تيرولو لپاره داسې ماحول ته وسپارل شي، په افغانستان کښې د (١٣٥٥) هـ، ش کال د ميزان د پنځلسمې نيټې د جزا د نافذ شوي قانون له موجوديت څخه پخوا به صغيران او مراهيق محکومين د هغو زندانونو په يوه څنډه کښې ساتل کيدل په کومو کښې به چې د لويو او خطرناکو جرمونو مرتکبين بنديان و او د زندان دغې برخې ته به يې د (کوره خانې) نوم کاراوه.

په هر صورت دا يو حقوقي اصل دی چې د جزا کلمه د جزايي مسئوليت مستوجبه ده يعنې يو شخص د ارادې د آزادی، بلوغ سن او صحت عقل شرايط ولري او بيا هم پخپله خوښه د قانون خلاف عمل مرتکب شي نو د جزا وړ گرځي او د جزا زيات ډولونه هماغه حبسونه دي چې په زندانونو کښې پر مجرمينو خيژي.

د افغانستان د جزا ذکر شوی قانون اصلي جزاگانې پر (اعدام، دوام حبس، اوږد حبس، منځنی حبس، لنډ حبس او نقدي جريمه) باندی ويشلي دي.

د خورد ساله مجرمينو (طفل، صغير او مراهق) په باب نوموړی قانون د حبس په ځای حجز او د محبس په ځای د دارالتاديب کلمې وکارولې چې دې دواړو کلمود مرتکيبينو د سن او سال له مقتضياتو سره تناسب درلود او د جرايمو د شدت او خفت له مخې يې په دارالتاديب کښې د حجز شرايط پيش بيني کړل يعنې د اطفالو تر (اوه کلنی) سن پورې په اکثرو مواردو کښې پدې اکتفا شوې وه چې د ماشوم له والدينو څخه خط واخستل شي چې د خپل ماشوم پوره څارنه وکړي او په راتلونکې کښې به ور څخه هيڅ ډول خطا سر نه وهي، خو د صغير او

مراهق په هکله د قباحت په مواردو کښې اکثراً له والدینو څخه د خط اخستل په جنخه او جنایت کښې په دارالتادیب کښې د حجز تیرول پیش بیني شوي و. په کابل کښې هغه وخت عملاً دارالتادیب تاسیس شوی و او د وخت د عدل د وزارت مربوط و. په دوه ښځینه او نارینه برخو ویشل شوی و، صغیرانو او مراهقینو پکې حرفوی کارونه لکه بوټ گنډل، خیاطی، ترکاڼي، رنگمالی او نور زده کول، همدا راز د لاسي کارونو، رسامی او خطاطی پروگرام او د لومړنیو ښوونځیو درسي پروگرام پکې موجود و، په افغانستان کښې په اوسني وخت کښې د دارالتادیب جوړیدل ځکه د وخت لوی ضرورت دی چې ډیرو کورنیو د خپل منځی جنگ له کبله خپل سرپرستان له لاسه ورکړي دي او له بلې خوا ډیرې کورنۍ په اقتصادي ستونزو اخته دي. همدارنگه د جنگ له کبله ډیر صغیران او مراهقین چې باید ښوونځیو ته ولاړ شي یا د کورنۍ لپاره نفقه گټي او یا مطلق بیکاره پاتې کیږي، چې په دواړو حالاتو کښې یې د جرم او خطا بلا گواښي. ځکه لوږه او بیکاري د جرمونو د مینځ ته راتلو دوه لوی کریمنولوژیکي عوامل دي.

په هر صورت د ټولنې د غه قشر ته متوجه کیدل او د هغوی د راتلونکې نیکمرغۍ غم خوړل او د کم عمره مرتکبینو لپاره د دارالتادیب جوړول ډیر گټور او ضروري اقدام دی.

# اوولسم څپرکی

الف - د افغانستان له مرکز څخه د لويو ښارونو واټن په کيلومتر:

١ - کندهار = ٤٧٩ کيلومتره.
٢ - هرات = ١٠٥٧ کيلومتره.
٣ - بلخ = ٤٨٣ کيلومتره.
٤ - ننګرهار = ١٥٧ کيلومتره.
٥ - پکتيا = ١٢٥ کيلومتره.
٦ - هيلمند = ٦٧١ کيلومتره.
٧ - ارزګان = ٤٧٠ کيلومتره.
٨ - بادغيس = ١٠٩٤ کيلومتره.
٩ - باميان = ٢٠٤ کيلومتره.
١٠ - بدخشان = ٥٨٨ کيلومتره.
١١ - بغلان = ٢٦٤ کيلومتره.
١٢ - پروان = ٦٤ کيلومتره.
١٣ - تخار = ٤٠٣ کيلومتره.
١٤ - جوزجان = ٥٨٦ کيلومتره.
١٥ - زابل = ٣٥٣ کيلومتره.
١٦ - سمنګان = ٣١٣ کيلومتره.
١٧ - غزنی = ١٣٥ کيلومتره.
١٨ - غور = ١٤١٢ کيلومتره.
١٩ - فارياب = ٧٩٦ کيلومتره.

۲۰ - فراه = ۸۵۸ کیلومتره.
۲۱ - کاپیسا = ۱۰۳ کیلومتره.
۲۲ - کونړونه = ۲۰۷ کیلومتره.
۲۳ - لغمان = ۱٤۰ کیلومتره.
۲٤ - لوګر = ۸٦ کیلومتره.
۲۵ - نیمروز = ۹۳٤ کیلومتره.
۲٦ - وردګ = ٤۵ کیلومتره.

ب - د افغانستان او د ځینو ښارونو پخواني او اوسني نومونه:

- اوسنی نوم = پخوانی نوم
- افغانستان - آریانا، خراسان
- د هرات ارګ = د اختیار الدین کلا
- د بلخ پخوانۍ کلا = هنداون
- پنجکوره = ګواریي یس
- پنجاب = زت ګوش
- جبل السراج = پروان
- کندهار = آراکوزیا - زابل
- چترال = کتور کاشکر
- رستاق = ولوالیز
- شینډند (سبزوار) = اسفزار
- سند = اندوس
- شبرغان = شیرګان
- قطغن او بدخشان = تخار
- کوهدامن = کاپیسا
- کشم = سکلاکند
- بلخ مزار شریف = بخدي
- مرو او مرغاب = مرګیانا
- غور او هزاره جات = غرج او غور

- نهرین = لاچین
- نورستان او چترال = بلور
- هرات = آریا هرای
- ایبک = سمنگان
- اشکمش = وزوالین
- بلوچیستان = گدروسیا - اوریشا
- پنجشیر = پنجهیر
- تاشقرغان = خلم
- جلال آباد = ننگرهار
- جنوبي = پکتیا
- خراسان = آبادیسا
- دولت آباد = فاریاب
- زنده جان = بوشنگ
- سرپل = انبار
- سوات = سواتس
- شلگر = هجویر
- کشک (قندهار) = فیروزوند
- کابل = ویکرت
- لغمان = لمپاکا
- مشرقی = گندهارا
- میمنه او شبرغان = گوزگان - جوزجان
- فراه او چخانسور = سکاستیانا
- مزار (ښار) = ده خیر
- وزیرستان = ویری
- هډه = مکارکرا

---

۱ :- یو وخت چې د هیواد ختیځو ولایتونو ته مشرقی ویل کیده نو ننني پکتیا ته جنوبی ویل کیده چې پکتیکا هم پکی شامله وه خو نن سبا پکتیا باندې هماغه پخوانی نوم چلیږي.

# اتلسم څپرکی

# افغانستان او ملګري ملتونه

په (١٩٤٥) م کال کښې پنځوسو هیوادونو د سانفرانسیسکو په کنفرانس کښې ګډون وکړ او د جون په (٢٦) مه د ملګرو ملتونو منشور منظور شو او د ملګرو ملتونو موسسه عملاً مینځ ته راغله، د ملګرو ملتونو منشور چې ددغې موسسې د اساسي قانون حیثیت لري او ټولو غړیو هیوادونو لاس لیک کړیدی. (١٩٤٥ م) د اکتوبر په (٢٤) مه نیټه انګلستان، فرانسې، چین، شوروي اتحاد او امریکا لاس لیک کړ او د اجرا وړ وګرځید. دغه پنځه هیوادونه چې ځان د ملګرو ملتونو ټولنې موسسین بولي د ویتو حق لرونکي دي چې دا حق په هغه نړۍ واله ټولنه کښې یو خاص امتیاز دی. افغانستان چې یو ناپیلي هیواد دی، اوسیدونکي یې مسلمانان او پرسوله مین خلک دي. د (١٩٤٦). کال د نوامبر په (١٩) مه نیټه د ملګرو ملتو دایمي غړیتوب تر لاسه کړ.

عمومي اسامبله چې د ملګرو ملتونو مهم رکن دی، په هغې کښې د نړۍ د ټولو هیوادونو د استازو رایې د ملګرو ملتونو په اجراتو ثرګندیږي او د ملګرو ملتو ټول غړي په هغې کښې مساوي نماینده ګي کوي، په مهمو نړیوالو مسئلو، په منشور کښې په ټولو ذکر شو مسئلو، د بودجې تصویب، او د سرمنشي په ټاکلو تصمیم نیسي. د یادونې وړ ده چې ددغې نړیوالي ټولنې د عمومي اسامبلی د (٢١) دورې د غونډې د ریاست ویاړ د ګران افغانستان یو نومیالی. بچي، پیاوړي دیپلومات، ستر ادیب او لیکوال ارواښاد عبدالرحمن (پژواک) درلود.

د ملګرو ملتونو ځای د امریکا د نیویارک په ښار کښې دی، خو ځینې څانګې یې په نورو هیوادونو کښې مرکزونه لري، لکه د اروپا لپاره د اقتصادي

کميسيون او د نړيوالی روغتيايی موسسی مرکزونه په جينوا او د کرنی او خوړو د موسسی مرکز د روم په (ښار) کښې دی.

د پرنسيب له مخې د ملگرو ملتونو هدف او مرام د بين المللی صلحې او امنيت ساتل، د ملتونو په منځ کښې د دوستی د مزو ټينگول له فقر، جهل او ناروغيو سره مبارزه کول، د ملتونو، حقوقو او آزاديو احترام کول دي.

د ملگرو ملتو د مصارفو لپاره هر غړی هيواد يوه برخه بودجه ورکوي او سهمېه يې د عمومي اسامبلی له خوا د يو هيواد اقتصادی توان په اندازه ټاکله کيږي. داسې چې که د هر هيواد سهمېه د هغه پر افرادو وويشله شي د مثال په توگه په قاهره کښې د دوه دانې سگرټو، په فرانسه کښې د يوه اخبار د گڼې، په هند کښې د پان د يوې پاڼې، په کيوبا کښې يوې دانې کيلی، په لندن کښې د يوې پيالې چای، په نيويارک کښې د يوې پيالی قهوې د بيې څخه به هم ارزانه وي.

ملگري ملتونه وايي چې يو هيواد هغه وخت د دوی په غړيتوب کښې داخليدای شي يا له دوی سره رسميت پيدا کولای شي چې سوله خوښونکي وي، د ملگرو ملتو منشور يې منلی وي، امنيه مجلس يې د گډون توصيه کړې وي، عمومي اسامبله يې په دوه ثلثه رايو دغه توصيه تاييد کړي.

په خواشينۍ سره بايد ووايو له بده مرغه ملگرو ملتونو خپل يو وفادار او بې آزاره غړی يعني افغانستان هير کړی دی. له کله نه چې د ميليونونو افغانانو په قربانۍ د شوروي متجاوز نظام ړنگ شو او د امريکا د پنتاگون د اداري جنرالانو د آرام ساه واخسته نو ملگرو ملتونو افغانستان له نظره وغورزاوه او په افغانسان کښې د پرديو مداخله کوونکو په لمسون مينځ ته راغلي کورنۍ جگړې له مينځه تلو لپاره او په څو تيرو کلونو کښې د سولې د ټينگدو په خاطر د ملگرو ملتونو غير فعال رول افغانانو ته هيڅ گټه رسولی نه ده.

له ملگرو ملتو څخه د افغانانو جدي غوښتنه داده چې واقعيتونه په نظر کښې ونيسي د عادلانه سولې لپاره يو جامع پلان جوړ او عملي کړي او د دې کار د بری لپاره له خپلو امکاناتو څخه کار واخلي، نه دا چې په جگړه ځپلي او وچکالۍ وهلي افغانستان کښې يوازی د کوکنارو د کر د بندولو او په افغانستان د بې رحمانه بنديزونو د لگولو اهتمام يې خپله ډيره مهمه، عاجله او ضروري دنده گرځولی ده. چې نه يې له نوم سره جوړ يږي او نه يې له مرام سره.

# نولسم څپرکی

## د افغانستان واکمنان

آریایان: د (۲۵۰۰ م، ز) په شاوخوا کښې د آریائی سپین پوټکو لوی ټولی په آریانا ویجه نومی هیواد او د امو په شمالی غاړو کښې د کوچیتوب او مالداری ژوند تیراوه او چې شمیر یې ډیر شونو د امو سویلی سیمو د باختر ورشو ته راوختل او د هندوکش په شمالی او سویلی لمنو کښې میشت شول، بیا د سند تر سیمی ولاړل او یو مدنیت یې جوړ کړ چې د (وید) پخوانیو څلورو کتابونو کښې یې انعکاس لیدل کیږی او له همدی امله یې ویدی مدنیت بولو چې د (۱٤۰۰ م، ز) په شاو خواکښې موجود و، دڅلورو ویدو نومونه دادي (ریگ وید، سام وید، اتهرو اوید او یجوروید) چې تر ټولو پخوانی یې ریگوید دی او په هغو کښې د افغانی قبیلو، پاچاهانو، نومیالیو خلکو، غرونو او جغرافیایی ځایونو ډیر نومونه راغلی دي.

خو د آرین خلکو تاریخی پیر له تاریخی سرودونو سره پیل کیږی او له همدې تاریخی سرچینی څخه مونږ د آرین خلکو اندونه، گروهه، د ژوندانه ډول او له افغانستان خاوری څخه د دوی مهاجرت څرگندوو، د ژبپوهنی له پرتلی څخه را ښکاری چې د افغانستان د ژبو او د ویدی او سنسکریت ژبو تر منځه ډیر ژبنی یووالی شته.

**اوستایي مدنیت:**

د افغانستان د آریائی خلکو دویم مدنیت په بخدي (بلخ) کښې د هندوکش

په شمالي او سويلي سيمواو د هيلمند په وادي کښې، چې د (۱۲۰۰) ق،م) په شاوخوا کښې پيل شو، دا تمدن په بخدي کښې زيږيدلي او د اوستاله کتابه څرګنديږي چې اريايي خلک د کوچيتوب، مالداري او کډه په شا ژوندانه څخه مدنيت ته رسيدلي او په کليو او ښارو کښې ميشت شويدي، او اقتصادي او ټولنيز ژوند په پوړيو کښې يې يو نوی پير پيل کړيدی په همدې وخت کښې په بلخ کښې د يما (جم) په نوم پاچا او زردشتي دين منځ ته راغلی دی.

د زردشت پلار پورو شاسپه (د زوړ اس خاوند) او مور يې «دوغدو» نوميده.

۱ - له ميلاد څخه (۱۲۰۰) کاله دمخه د پيش د اديانو د سلسلی لومړی ستر پاچا «يما» په بخدي کښې پاچا شو، په بخدي کښې د اريا يي لومړی ښار ودان او لومړی مرکز جوړ شو. د بخدي پاچا يما لومړی پاچا دی چې د مدنيت او ښاريتوب بنسټ يې ايښی او ټولنيز ژوند يې اوډلی دی.

کرنه، څاروی روزنه، د اوسپنې ويلول، د کاليو اوبدل، د وسلو او جواهرو کارونه، د لښکری طبقي ټاکل، ختمګري او د فلزاتو او درملو کارول يې دود کړل، په بخدي کښې يې مدنيت جوړ او خپور کړ.

## ۲ - د کاوی (کيان کهول):

ددې کورنۍ لومړی پاچا (کواته) نوميده او ده ته يې کواته «کی قباد» وايه تر دغه مهال وروسته او ستائی پهلوانان د يادونې وړ دی چې په هغو کښې ډير نامتو او لوی پهلوانان د سيستان له خاوری پورته شويدي چې د اوستا له روايتونو د دوی تو کم د بخدي هماغه يمه جم = جمشيد پاچا ته رسيده.

ددی پهلوانانو په نامه بيل، بيل کتابونه شته لکه فرامرز نامه، بروز نامه، شهريار نامه، بانو ګشب نامه، جهانګير نامه او سام نامه، همدا راز د فردوسی په شاهنامه کښې د دوی داستانونه راغلي دي او هم په افغانستان کښې ځينی ځايونه د دوی په نومونو لا تر اوسه شته لکه تخت رستم په سمنګان کښې، د رستم غونډۍ، د ذال کلا، د کک کهزاد کلا، د رستم اخور په (فراه) کښې او نور.

## ۳ - د هخامنشیانو واکمنی:

جزئیات یې په تفصیل څرګند نه دي خو دومره ویل کیدای شي چې ( ۵۵۰ م، ز) یعنی د داریوش د راتلو څخه بیا تر (۳۳۱ م، ز) پورې چې هخا منشی شاهنشاهی دا سکندر په لاس له منځه تلله د افغانستان خاوره د هخامنشی لوی شاهنشا هی یوه برخه وه چې د سیند هاخوا د پنجاب یوه برخه هم ورپورې نښتې وه.

د پارس د تخت جمشید د داریوش په ادیره کښې د هخامنشی دولت د تابع شویو خلکو تصویرونه کښل شویدي چې د نورو د یرشو ملتو په لیکه کښې دا نومونه هم شته:

پارتی (خراسانی)، هراتی، سغدی، باختری، خوارزمی، زرنګی (سیستانی).

رخجی (کندهاری)، تــه تــه ګوشي (پښتیا د سیند تر غاړې پورې)، ګنداری، هندي او ساراګاتی دا خبره هم ځنی ښکاري چې د اوسنی افغانستان خلک د پنځمی م، ز، پیړۍ په شاو خوا کښې د خپلو ځایونو او ولایتونو په نومو پیژندل کیدل.

د داریوش په مانۍ کښې په دري ژبو (پارسی، ایلامی او بابلی) یو ډبر لیک پیدا شوی چې په هغی کښې هم د افغانستان د ولایاتو د خلکو یادونه شوی ده.

د هخامنشیانو د روستی واکمن دریم داریوش (کدمان) یو بی کفایته او تنبل سړی و.

## د سکندر یرغلونه:

د هغو لویو تاریخی بریو په ترڅ کښې چې تر ویدی او اوستایي فرهنګ او هخامنشی مدنیت تر اغیز وروسته یی د افغانی فرهنګ په جوړولو او زموږ په هنر او پخوانی فکری جوړښت کښې ډیر زیات او څرګند اغیز کړی یو هم د افغانستان په خاوره د سکندر مقدونی لښکر کشی وه چې د دغه هېواد د فرهنګ، ژوند انه، فکر او مدنیت لرغونی لړی ته یې څرګنده اوښتنه او نوی بڼه

ورکړی ده، چې د افغانستان په تاریخ کښې دا پیښه ځانګړی ارزښت او ژور اغیز لري.

سکندر په شل کلنۍ کښې د پلار تر مرګه وروسته د یونان په شاهی تخت کښیناست د یوناني کیسو له مخی سکندر د پلار له خوا (هرکولس) او د مور له خوا (اشیل) د یونان افسانوی پهلوانانو ته رسیږی، سکندر چې د نړۍ د نیونی اراده درلوده له اتیا زره لښکرو او جنګی بیړیو سره د «دردانل» تر ابنارا پوری وتو او پر اسیائی یرغل وکړ، سکندر د ۳۳۰ م، ز، څخه تر ۳۲۶ م، ز، پوری زموږ په هیواد کښې زاره چاودی ژوند وکړ تل به د پاڅونونو او جګړو سره مخ و او دوه واره په کونړ کښې زخمی هم شو. سکندر د هوښیار تس په نامه د باختر د یو ملی مشر د نیولو څخه وروسته د هغه د ښکلی لور روښانی یا رخشانی سره په ۳۲۷ م، ز، کښې واده وکړ خو یونانی مشران پری خوښ نه وو. سکندر د افغانستان د جنوب (بلوچستان) له لاری پارس ته ولاړ او چې بابل ته ورسید په ۳۲۳ ق، م، د جون په (۱۳) شپه په «۳۲» کلنۍ د ملاریا په ناروغۍ مړ شو.

## په آریانا کښې موریا لنډ مهالی واکمنی:

د سکندر تر مړینی وروسته د ده غځیدلی امپراطوری هم ړنګه شوه د ده لویو افسرانو په طرابلس کښې جرګه وکړه او د سکندر هیواد یې په پخپلو منځو کښې وویشه چې د سکندر د ماندینی «روښانی» پلار پکی د آریانا د مرکزی سیمی (پاروپا میزاد او کابل) حکمران شو، د آریانا ختیځ ایالتونه د یونانی جنرالانو او هندی شازیو تر منځ د کشمکش په حال کښې پاتی شول. په هند کښې د موریا سلطنت منځ ته راغی که څه هم د اریانا په ختیځو برخو کښې د موریا واکمنی له سیاسی پلوه ډیر دوام نه درلود او دلته د یونانیانو باختری خپلواک سلطنت منځ ته راغی خو د موریا پاچا هانو او د بودائی دین مبلغانو دا دین د اریانا په ختیځ کښې خور کړ چې په نتیجه کښې یې د فرهنګ په تاریخ کښې یو غوره څپرکی چې د «ګریکو بودیک» په نوم یادیږی منځ ته راغی، او کابو زر کاله دا دین او هنر په افغانستان کښې پاتی شو، په نتیجه کښې د باختری فرهنګ، یونانی

فرهنگ او بودائي فرهنگ عناصر سره يو ځای او ګډ شول د موريا د سلطنت موسس «چندره ګوپتا» و چې په (۳۰۰ م، ز) کښې مړ شو.

بيا قدرت بيندوساره او وريسې اشوکا ته ورسيد چې د افغانستان په پوره برخه يې د ارغنداو ترغاړی سلطنت کړيدی. اشوکا اول جګړه مار او وروسته خير خواه او د بودائي دين تبليغ ته يې ملا وتړله او هغه د ښن يې و مانه او د انسان او حتی حيواناتو د آزار او زوريدلو مخالف شو، د اشوکا د استوپو نښې په افغانستان کښې آن تر کندهار پوری رسيږي. د باختر يوناني پاچاهانو د سقوط لامل د ساکا او سيتي تيرونو منځ ته راتګ دی چې دا پاچاهي يې د م، ز (ق، م) د لومړی پيړی په لومړی نيمايې کښې پای ته ورسوله او په دی ترتيب د دوی واکمنی تر دوه نيم سوه کاله وروسته ختمه شوه د «د يودوتوس» له وخته د (۱۰۰ م، ز) تر شاوخوا پوری ۳٦ پاچاهانو او يوی ملکی په افغانستان او هند کښې واکمنی چلولی ده.

يوناني فرهنګ او هنر يې په آريانا او هند کښې خور کړی دی. وروسته د آريانا په ځينو برخو د ساکانو، پارتيانو او پهلوايانو واکداری تيره شوی ده.

## کوشانيان:

چينايانو دوی «يوچي» بللي دي چې د خپل پخواني ټاټوبي څخه چې د چين ختيز خواته وراوتلي او د آمو د سيند شمالي سيمو ته راغلي، دوی د هغه ځای ساکان په باختر کښې د آريانا ختيځو سيمو او د هندوکش جنوب ته وشړل چې تر (۱۲۷ م، ز) وروسته تر هنده پوری هم په شا شول او ځای يې يوچيانو ونيو. يوچي خلک د (۷۰ م، ز) په شاوخوا کښې تر آمو راپوری وتل او د تخاريانو په مرسته يې باختر ونيو د يوچي او تخاريانو تر منځ ګډون راغی او د کوی شانګ «کوشان» نامتو ټبر د دغو خلکو د پنځو ګونو ټبرونو څخه دی، د کوشيانو مشر چې «کيوتسيو کيو» نوميده د نورو څلورو قبيلو مشران يې د ځان تابع کړل او پخپله دی د کوشانګ پاچا په نامه وپيژندل شو.

کوشان شاه وکړای شول چې د يوناني او پارتي پاچاهانو بقايا له مينځه

یوسی، د آریانا په ټوله خاوره کښې خپل نفوذ ټینګ کړی او د افغانستان د خورا ستری امپراطورۍ بنسټ کښېښودی دده زوي دویم ویمدکد فزیس د خپل هیواد ویش ختیځ خوا د ګنګا تر غاړی پوری رسولی، په هر صورت د لویو کوشانیانو شاهنشا هی د « ۱۲۵ یا ۱٤٤م » په شاوخوا کښې یو چاته ورسیده چې کنیشکا نومیده او ښایې چې د کدفزیس د کورنۍ سره یې د خپلوۍ اړیکی درلودی، دی د هغو لوی کهاله موسس دی چې د دویمی میلادی پیړۍ تر منځ پوری زموږ په هیواد کښې پاچاهی کړی او خپله واکمنی یې په هند کښې هم پراخه کړی وه. دده د شاهنشاهی مرکز په ژمی کښې پورو شاه پوره (پیښور) او په اوړي کښې د کاپیسا بګرام و.

د هیواد ختیزی پولی د هند تر بنارسه. غرب خواته تر پارته رسیده او شمال خواته یې یارکند، کاشغر او ختن هم ونیول او بودایې دین یې منلی و.

د لویو کوشانیانو پیر « ۱۲۵ م، ز » د کنیشکا له جلوسه پیل او په (۲۵۰ م) پر واسوشکا پای ته رسیږی.

## د هیپتالیانو منځ ته راتګ:

تر کنیشکا پاتی کسانو د ۲۲۵ کالو شاوخوا پوری حکومت وکړ، هندی مفکرینو د کوشانیانو لپاره د بودایی دین منل د هغوی د پاچاهی د زوال لامل بللی دی، نو ځکه کوشانیان خپل برهمنی دین ته واوختل، خو په دغه وخت کښې اردشیر بابکان د ساسان لمسی په پارس کښې یو ډیر غښتلی سلطنت جوړ کړ. تر ده وروسته شاه پور او بیا دویم ساسانی هرمزد. دویم شاهپور مشهور پاچاهان تیر شوی دي خو د کوشانیانو بقایا و د کید اریانو په نامه د هغه وخت د افغانستان په ځینو برخو واکمنی درلوده چې په لومړی سر کښې یې کاپیسا او بیا یې پیښور پلازمېنه وه. د پیروشاه او بهرام په نامه د پاچاهانو نومونه یې مشهور دي. د یادونی وړ ده چې د دویم یزدګرد ساسانی پاچا او کیداریانو تر منځ د (٤۳۹ م - ٤۵۷ م) پوری جګړې روانی وې.

د پنځمی زیږدی (میلادی) پیړۍ په پیل د کوشانیانو او کیداریانو بقایاو

خپل ځواک د دوه لويو امپراطوريو تر منځ چې ختيځ ته يې د هندي گوپتايانو امپراطوري او لويديځ ته يې د پارس د ساسانيانو شهنشاهي وه بايلود خو د خپلي خپلواکۍ او ملي موقعيت د ساتني لپاره يې د دغو دواړو لويو قوتونو تر منځ خپل شته والى ساته. د ٤٢٥ ز، کال په شاوخوا کښې د آريائي توکمه سپين رنگي تبر چې هپتاليان نوميدل د منځني اسيا له ځمکو د هندوکش شمالي سيمو تخار او باختر ته د آمو تر سينده راپوري وتل، هيپتاليانو چې نوم يې د بدخشان په يفتل او د غزني د چغتو په هفتاله کښې تر اوسه پاتي دى تر ٤٢٥ ز، کال پوري ټول باختر ونيو. يفتليان په ټول افغانستان کې له مروى تر کشميره خواره شول او ډير ځواک يې وموند. د يفتليانو مشهور باچا خشنواز » يا « اخشوان » د اريانا خاوري يوالي تامين او داسي يو غښتلي دولت يې جوړ کړ چې ساسانيانو يې خراج ته غاړه کيښوده، تر ٤٦٠ ز، کال پوري د اخشوان پاچاهي تر ختن، چين، پارس او هند پوري خوره وه او د هند گوپتايان يې په سر، سر وتکول. بل مشهور يفتلي پاچا « توره منه » وه چې واکمني يې په هند خوره شويده، وروسته د هغه زوى « ميهيره کوله » پاچا شو چې بلخ، باميان او بادغيس يې پوځي مرکزونه وو دا سړى په ٥٥٠ ز، کال مړ شو.

دده تر مرگه وروسته د يفتلي دولت انقراض شروع شو په نتيجه کښې يفتلي دولت له منځ ولاړ. د يفتلي. ترکي او کوشاني کورنيو سيمه ايز امارتونه تر اسلامي دوري پوري په افغانستان کښې پاتي شول. د تاريخي اثارو څخه داسي معلوميږي چې هيپتاليانو د اور او لمر ربا لمانځله د بودائي دين سره مخالف و او بودايت يې له منځه ووړ.

## افغانستان د اسلام د پيدايښت پر وخت:

د اوومى ميلادي پيړۍ او د اسلام د دين تر راتلو پوري په افغانستان کښې بودائي، زردشتي، لمرپرستي، شيوائي، مسيحي، نسطوري ديانتونو او د ځينو ارباب انواعو او سيمه ايزو خدايانو لمانځلو دوران درلود.

همدارنگه د افغانستان خاوره د جغرافيايي اقليم او وضعى له مخي بايد په

پخوانیو پیړیو او وختو کښې د ګډو شویو فرهنګونو د پیدا ینبت ځای وبلل شي.
انګریزی تاریخ پوه پروفیسور « تاینبی » پخپل نوی کتاب کښې چې « د اکسوس او جمناتر منځ » نومیږی دې نتیجې ته رسیدلی دی چې د افغانستان خاوره یوه Round - Abaut یعنی د فرهنګونو د انشعاب تکی او د ځلا مرکز او څلور لاری وو چې د څو زرو کالو په تیریدو یې چې څه پخپله درلوده او څه چې له دباندی ورته رارسیدلی و خپل شاوخوا هند، ایران، ماورالنهر او مرکزی آسیا ته خواره کړی دي.

د لومړی اسلامی پیړی پر لومړی څلورمه ( ۲٤ هـ ) په شاوخوا کښې د عربی بریالیو لښکرو فتوحات د خراسان او مروې ترمنځ اوله سیستانه د ارغنداو ترناوې پوری رارسیدلی و او همدا وخت دی چې افغانستان په تیره بیا په جنوبی جبهه کښې اسلامی بریالیو عسکرو د عربی نوي دین، افکارو، کلتور او ژبی د تیریدو لاره ګرځیده او دا ټول فرهنګی مهم توکی په افغانستان کښې دوې پیړی له پخوانی تهذیبی او کلتوری بنې سره ګډ شول او بیا په ګډه د « سند » د مهران تر څنډو پوری پرمخ ولاړل څرنګه چې خراسان د منځنۍ آسیا پر څلور لاری پروت دی، نو له لویدیزه ختیځ ته او له ختیځ څخه لویدیز ته د افکارو د انتقال ځای وګرځید. په لنډه توګه سړی ویلی شی چې زموږ په هیواد کښې ټل افغانی فرهنګ موجود و که څه هم د زمانې له تیریدو سره یې بنی بدلون کړی دی، خو ددې ګذرګاه افکارو، اندیښنو او مدنیت ټل خپل افغانی پیژند او تشخص ساتلی دی.

## افغانستان ته د اسلام راتګ:

د اسلام د پیدا ینبت څخه لا د یوی پیړی څلورمه برخه نه وه تیره شوی او ستر خلیفه حضرت عمر فاروق « رض » د اسلامی خلافت پر ځای ناست و چې د عربو زړه ور او جهان نیوونکی لښکر د پارس د ساسانیانو زړه شاهنشاهی له پښو وغورځوله او د ساسانی کورنۍ وروستنی پاچا د جلولا او نهاوند تر جګړو وروسته خراسان ته راغی. د اسلام خلیفه حضرت عمر « رض » « احنف د قیس

زوی » په یزدگرد پسی وگماره، یزدگرد په مرو کښې ماهوی سوری ته پناه یوړه احنف د قیس زوی د خراسان ځمکه په روغه ونیوله. یزدگرد په (۳۱ هـ) د یو ژرنده ګري له لاسه ووژل شو.

د افغانستان خلکو له مروی او سیستان څخه نیولی تر کابل او پیښور پوری څه د پاسه یو سل کاله د عربو د بریالیو لښکرو په وړاندی مقاومت وکړ دا غرونه تل د خونړیو جګړو ډګر وو، او هغه وخت چې رتبیلانو او کابل شاهانو په زابل او کابل کښې د عربو د فاتحینو په لاس ماتی وخوړه د اسلام د لښکرو پر مختګ لې څه اسان شو. د افغانستان خلکو د اسلام مبارک دین ورو، ورو ومانه، په دې وخت کښې د ګندهارا ولایت له کابله تر پیښوره، ویهند، کندر، سند او ټیکسلا پوری د ګریکو بودیک د مدنیت او هنر مرکز و او په دغه هیواد کښې د بودایې او برهمنی اد یانو لوی مرکزونه موجود وو.

په افغانستان کښې د راشده خلافت او اموی امارت یو سل او دیرش کلنه دوره په کړکیچ او جګړو تیره شوه، پدې جګړو کښې د عربو مشهور او زړه ورو جنګیالیو لکه احنف د قیس زوی، عبدالله د عامر زوی، محمد د قاسم زوی، قتیبه د مسلم زوي، عبدالرحمن د سمره زوی، تمیم د اسید زوی، مهلب د ابی صفوه زوی، عبدالعزیز د عبدالله عامر زوی، او موسی د طلحه زوی معروف پاتی شول چې د دغو سردارانو څخه د ځینو قبرونه اوس هم زموږ په هېواد کښې شته او خلک یې په درناوی سره یادوی.

د تاریخ پوهان ددې اوږدو جګړو علت داسی بیانوی چې د افغانستان خلکو لومړی د عربی دولت سیاسی او لښکری واک نه مانه، دویم دا چې د بنی هاشم او بنی امیه تر منځ په اختلاف کښې د آل هاشم پر خوا وو. وروسته تر هغه چې اسلام یې ومانه او له وسلی یې لاس واخیست تل یې دا هڅه وه چې خلافت دې بیرته بنی هاشم ته ور کړل شی او هم یې زیارویست چې خپله واکمنی او خپلواکی وساتی.

# عباسیان

## ۱۳۲ هـ ۲۰۵ هـ

عبدالرحمن مشهور په ابومسلم مروزي په ( ۱۰۰ هـ) کال زيږيدلی و په ۲۳ کلنی کښې يې دې ته ملا وتړله چې د امويانو واکمنی ختمه او عباسيان قدرت ته ورسيږي نو له مروی څخه نيولی تر تخارستان پوری خلک يې له ځانه سره کړل او د عباسی کورنۍ خلافت يې اعلان کړ. تور بيرغ يې ورپاوه او د خراسانی لښکرو سره په کوفه ورننوت د کوفی په لوی جومات کښې يې د عباسی عبدالله سفاح په نوم خطبه وويله، د سفاح ورور د ابو مسلم د شان او قدرت څخه وويريده نو دغه سړی چې خليفه سفور روانيقی نوميده د خراسان دا نامتو بچی يې د (۳۷) کلنی په عمر وواژه.

د عباس کورنۍ تر ټولو مشهور خليفه هارون الرشيد و. په خراسان او سيستان کښې اکثراً د بغداد له خوا توظيف شوی اميران يا واليان په جګړو کښې راګير وو. د افغانستان له هغو واکمنو کورنيو څخه چې د عباسی کورنۍ د خلافت په جوړښت کښې يې له خراسانی ابو مسلم سره ملګری وکړه يوه د غور د سوريانو کورنۍ وه.

د عباسيانو په ټوله دوره کښې په افغانستان کښې د خپلواکۍ غوښتنی د پاره لړزوونکی غورځنګونه پيداکيدل چې له همدی کبله په ۱۹۲ هـ کال عباسی خليفه هارون الرشيد مجبور شو چې پخپله خراسان ته ولاړ شي.

سيستانی پهلوان امير حمزه د ديرش زره تکړه لښکر سره د نيشاپور خواته وخوځيد.

خو ځنګه چې د ۱۹۳ هـ کال د دويمی خور په مياشت کښې خليفه د خراسان په طوس کښې مړ شو، حمزه د پاتی ويرجنو سره جګړه ونه کړه او بيرته سيستان ته ولاړ.

# خپلواکه اسلامي دوره

## طاهريان

## ۲۰۵ - ۲۵۹ هـ

ددې کورنۍ نوميالي بچي طاهر د حسين زوی د مصعب لمسی او د زريق کړوسی د هرات په لويديځ پوشنګ (ننني زنده جان) کښې د ځواکمنو کورنيو څخه و، نيکونه يې د عباسيانو په دوره کښې د پوشنګ حاکمان تيرشوي وو او پلار ته يې د عباسي کورنۍ له درباره د شام او بغداد حکمراني هم په ۱۵۹ هـ کښې ورسپارل شوې وه حسين په ۱۹۹ هـ کښې مړ شو دده زوی طاهر د خراسان د آزادۍ پالو په چاپيريال کښې وده وکړه او په اسلامي خراسان کښې يې د لومړني ملي حکومت بنسټ کيښود. د خپلواکۍ د لارې د تيرو سرښندونکو آرمان د همدغه ننګيالي په ميرانه لاس ته راغي چې دوه سوه کاله يې ددغه هدف لپاره هلې ځلې کړې وې.

د هارون الرشيد تر مړينې وروسته يې د زامنو امين او مامون تر منځه اختلاف پيدا شو طاهر پوشنجي د مامون په طرفداری د خراساني لښکرو په مشرۍ په بغداد حمله وکړه د امين د لښکر مشر علي د طاهر په لاس ووژل شو لښکر ماته وکړه طاهر د امين سر پرې کړ، مامون يې د بغداد په تخت کښيناوه، مامون طاهر ته د خراسان حکمراني او د ذاليمنين لقب ورکړل، طاهر د ۲۰۷ هـ کال د څلورمی خور په ۲٤ مه د جمعې په ورځ د خراسان د خپلواکۍ اعلان وکړ، تر دوو پيړيو وروسته په خراسان کښې د يو ملي خپلواک دولت بنسټ د طاهر په لاس کيښودل شو. ددې کورنۍ څخه په افغانستان کښې طاهر د حسين زوی (۲) طلحه د طاهر زوی (۳) عبدالله د طاهر زوی (٤) دويم طاهر د عبدالله زوی (۵) محمد د دويم طاهر زوی (٦) دريم طاهر محمد حکمراني کړې ده.

# صفاریان
## (۲٤۷ - ۲۹۳هـ)

د امویانو او عباسیانو په وختو کښې سیستان تل د سیاسي هیجاناتو مرکز و، یو سیستانی میړه چې د لیث زوی یعقوب و سرته راووت دا سړی د سیستان د (قرنین) په کلی کښې زیږیدلی و، لومړی یې د خپل ورور عمرو لیث سره یو ځای د سیستان حکمران د صالح د نضر د زوی په خدمت کښې داخل شو، یعقوب زړه ور سړی و غوښتل یې چې په خراسان او سیستان کښې غښتلی حکومت جوړ کړی د ۲٤۷ هـ کال د محرم په ۲۵ مه د دوشنبې په ورځ د خپلو وسلوالو پلویانو په مرسته د رهم بن نضر او خوارج مات کړل، بیا یې له طاهریانو هرات ونیو هره خوایې پر مخالفینو یرغلونه وکړل، هغوی یې له مینځه یوړل او د ابن حلکان په وینا د ۲٦۳ هـ پورې یې د شاوخوا ټول ملکان د ځان تابع کړل لکه د ملتان، رخج، طبین، زابلستان، د سند او مکران ملکان.

یعقوب لیث د ۱۷ کالو پاچاهي وروسته د قولنج په ناروغۍ مړ شو. په اسلامي دوره کښې یعقوب لومړي عادل، با تدبیره او ښیوونکی واکمن و د افغانستان ټول هیواد یې د امو څخه تر سیستانه، مکرانه، بادغیسه، مروه، هراته تر کابل، گردیز او زابلستانه ونیوه، د عسکرو او وسلو په تنظیم او د مالي چارو په سمون یې کار وکړ. په افغانستان کښې صفاریان د اسلامي پیر لومړنی علم دوسته، عمران خوښوونکي او عادل پاچاهان وو، په هیواد کښې یې دیني او سیاسي یووالی راووست. د صفاریانو په وخت کښې دری ژبه ادبي او درباري ژبه شوه، په همدې دوره کښې د رتبیلانو او کابل شاهانو کمبله له افغانستان څخه ټوله شوه.

# سامانیان

(۲۷۹ - ۳۸۹ هـ)

د سامانیانو کورنۍ د «سامان خداه» له اولادې څخه وچې یو نجیب سړی و، د بلخ په کلیوالو سیمو کښې حکمران و، دین یې زردشتي و او د مامون الرشید په هڅه په ۱۹۷ هـ کښې مسلمان شو که څه هم ددې کورنۍ څخه ډیر کسان واکمنۍ ته ورسیدل خو د آل سامان مقتدر واکمن او بنسټ ایښوونکی اسمعیل د احمد زوی دی چې د بغداد د خلافت دربار د سیستان د آل صفار په مقابل کښې تقویه کړ. ددې لړۍ وروستنی واکمن ابو ابراهیم منتصر د دویم نوح زوی وچې په (۳۹۵) هـ ووژل شو.

د سامانیانو په دوره کښې د اسلام دین د اسلامی مدنیت سره تر کابل رارسیدلی وخو د هیواد د ختیځو څنډو لکه ننګرهار، لغمان، کنړ او همدار نګه د خوست او منګلو د غرو اوسیدونکی پر خپلو پخوانیو ادیانو، ژبو او مدنیت پاتی و او دری ادبیاتو ښه وده کړی وه.

# پښتانه واکمن

## (۳۰۰ هـ) په شاوخوا کښې

د هغه ډير پخواني کهاله چې د کسی (سليمان) پر غره، د غور پر غرو او د هغو سيمو په شاوخوا کښې د پښتنو واکمنی او لاربښوونه کوله د کيس عبدالرشيد پښتون دری زامن مشهور دی چې غرغښت، بيټنی او سړبن نوميدل، پدې هکله سليمان ماکو پخپله تذکره، ابو الفضل علامی په آين اکبری، اخون درويزه په تذکره الابرار او مخزن اسلام، نعمت الله هروی په مخزن افغانی کښې شيخ امام الدين خليل په تاريخ افغانی کښې د دري کسانو واکمنی تائيد کړيده. د افغانی انسابو په کتابو کښې دا دری وروڼه غرغښت، بيټنی او سړبن د پښتنو ټبرو د لړی سرونه گڼل شويدی.

# فريغونيان

## ۲۰۵ - ٤۱۰ شاوخوا پورې

د فريغونانو کهول د افغانستان د لويديزو سيمو، سيمه ايز پاچاهان وو چې په عدالت، نيکنامی او د علومو په پالنه يې شهرت درلود، د فريغون په دربار کښې نامتو پوهان او ليکونکی روزل شوی دي چې د هغی جملی څخه بديع الزمان (همدانی)، ابوالفتح بستی، مفاتيح العلوم خاوند خوارزمی او د حدود العالم نا څرگند ليکوال مشهور دي. ددې کورنۍ نوميالی کسان دادي:

امير فريغون، امير احمد د فريغون زوی، ابو حارث محمد د احمد زوي، فريغون د محمد زوي، ابونصر احمد د محمد زوي او حسن د ابو نصر احمد زوي.

# د ملتان لودیان

## ۳۷۰ - ٤۰۱ شاوخوا پورې

د ۳٦٦ هـ پر شاو خوا سبکتگین په غزنی کښې واکمن او سامانی واکمن کمزوری شول د افغانستان ښارونه له تخارستانه او بلخه تر گوزگان، هرات، سیستان، بست او د کابل تر گردیزه د غزنی په پایتخت پوری وتړل شو، په دغه وخت کښې د افغانستان ختیځو سیمو تر ماورای سند او ملتان پوری د ملتان د لودیانو په نامتو کهاله اړه درلوده، دا کهول په هند کښې د اسلام او افغانی کلتور لومړنی ممثل دی، مونږ وینو چې لودیانو په (۸۵۵ هـ) کښې د بهلول لودی په مشری هند کښې د سلطنت دویمه کورنی جوړه کړه او سل کاله یې حکومت وکړ خو د لودیانو لومړی کهول د افغانستان په تاریخ اړه لري او د بهلول کورنی په هند کښې پاچاهی کړیده.

د لودي کورنی نومیالی دادي (شیخ احمد لودی، شیخ رضی لودی، نصر د حمید زوی، ابو الفتوح د وار د نصر زوي او شیخ د دوار زوی.)

# د تخارستان د باینجور کورنی

## ۲۳۲ - ۳۷۲ هـ، پوری

ددې لړی امیرانو په تخارستان، بلخ، خلم، ترمز، اندارب، پنج هیر، بامیان او وخش کښې حکمرانی کوله او په هغه باینجور اړه لري چې د عباسی خلیفه گانو منصور او مهدی هم مهالی وو، کیدای شی چې تر اسلام د مخه د تگین شاهانو بقایا به وي.

دې امیرانو ځینو یې پخپل نامه سکی وهلی وې چې داود د الیاس زوی، ابو داود د احمد زوی، ابو جعفر احمد د محمد زوي، جعفر د احمد زوی او احمد د جعفر زوی پکې مشهور دي.

# د غرستان شاران

## ۲۸۹ - ۵۵۰ هـ پورې

د شار کلیمه د شیر او شاه سره ګډه ریښه لري او دا د افغانستان د منځنۍ سیمې د یو شمیر واکمنو لقب و چې د واکمنۍ سیمې یې ختیځ خواته د بامیانو د شیرانو د هیواد ګاونډۍ وې.

دا شاهي کهولونه د هپتالي کوشاني عناصرو بقایا دي، د حکمرانۍ مرکز یې بشین کښې و، شورمین او بغشور هم د هغه ځای ښارونه و په اسلامي پیر کښې د غرستان «غرجستان» د شارانو یادونه د سلطان محمود د فتوحاتو او د غزني سلطنت تر اداری لاندې منځ ته راځي. هغو شارانو چې د سلطان محمود تر وخت وروسته تیر شوي د غزني او غور تر مرکزي واکمنۍ لاندې یې ژوند کاوه پوهان او علم پالونکي خلک وو.

# د اندراب امیران

دا امیران هم د هیپتالي کوشانیانو د پخوانیو حکمرانانو له پایښوره ښکاري چې په اسلامي پیر کښې یې اسلام منلی او د انداراب په غرو کښې پاتې شوي دي له دغو امیرانو یوازې دوه تنو نومونه د دوی له سکو څخه لاس ته راغلي دي او دا سکې د آرمیتاژ په موزیم کښې شته (مکتوم د حرب زوي ۳۵۹ هـ او سهلان د مکتوم زوی ۳۶۵ - ۳۷٤ هـ پوري).

# چغانیان امیران - آل محتاج

چغان (معرب یې صغان) تر آمو ها خوا یو ځای دی چې د تاجکستان سویلي برخه وه، له پخوا زمانو څخه یوی سلطنتي کورنۍ د «چغان خدات» په نامه هلته حکومت کاوه، چې د آریایې تاجیکي عناصرو څخه وو، د ال محتاج امیرانو په ټولنیزه توګه د سامانیانو او غزنویانو له سلطنتي کورنیو سره ښې اړیکې ساتلې، د صفوي ملاتړ لاندې یې د شمالي ولایاتو حکمراني له بدخشانه او تخاره نیولې تر بلخ او جوزجان پوري کوله، دا کورنۍ د دري ادب له پالونکو څخه ګڼله کیږي فخر الدوله ابو المظفر احمد د محمد زوی له همدې کورنۍ څخه و چې فرخي اود قیقي ستایلی و او د داغګاه مشهوره بولله «تا پرند نیلګون بر روی پوشد مرغزار» د ده په ستاینه کښې ده. ددې امیرانو دوره تقریباً «۲۵۰ - ۳۷۷ هـ» پوري وه.

---

د آرمیتاژ موزیم چې یو ستر او غني موزیم دی د روسې په سنت پیترز بورګ کښې موقعیت لري. (غ).

# سیمجوریان

د «سیم جور» کلیمه د جستی په وینا په «نام های ایرانی» کښې د زرین گورخر «سیم گورش په مانا ده» او دا د خراسان د یوه سردار ابو عمران سیم جور نوم دی چې د سامانی اسمعیل د احمد زوی په دربار کښې یې د سرمنشی «دوات دار» دنده درلوده (۲۸۷ هـ) نو ځکه یې دی «دواتی» باله چې د خراسان یوه لویه کورنۍ وه. د سیمجوریان نومیالیو په خراسان کښې د سامانی د وخت او د غزنوي پیر د پیل په پیښو کښې لویه ونډه درلوده، ډیر مهال یې په بشپړ ځواک او خپلواکۍ حکومت کړیدی، کله یې هم د پاچا په عنوان سکه وهلی ده چې د ابو الحسن محمد ناصر الدوله سکه شته همدا رنگه ابو علی محمد مظفر عماد الدوله (۳۷۷ - ۳۸۷ هـ) هم سکه وهلی او خپلواکی یې درلوده.

# غزنويان

## ۳۵۱ - ۵۸۳ هـ

د غزنويانو لړۍ د امير الپتگين څخه شروع په خسرو ملک د خسرو شاه په زوی ختمه شوې ده چې تقريباً دوه پيړۍ ددې کهول (۲۳) تنو په افغانستان کښې واکمنی درلوده، ددې کورنۍ مشهور پاچا سلطان محمود غزنوي دی چې پخپل ژوندانه کښې په دې بريالی شو چې له اصفاهانه نيولی تر عراق، همدانه او طبرستانه، ختيځ خواته د گنگا تر څنډو، شمالاً تر خوارزمه، سويلاً تر بلوچستانه او گاليوار پورې يوه لويه شاهنشاهي جوړه کړي.

سلطان محمود اتل او زړه ور پاچا و ښکلی بڼه يې درلوده، سترگې يې کوچنۍ او ويښتان يې سره و په ۳۶۱ هـ د عاشورا پر شپه مه زيږيدلی و د ۳۳ کالو پاچاهي وروسته په ۶۱ کلنۍ کښې د سل په ناروغۍ مړ او فيروزه مانۍ کښې ښخ شو. د غزنويانو دربار په آسيا کښې د شاعرانو، عالمانو او د فن د خاوندانو پالنځای و. د غزنويانو په وخت کښې اسلامي مدنيت او دري ژبې ډيره وده وکړه.

نامتو پوهان او ليکوالان يې البيروني، ابن سينا، ابوالفتح «بستي»، ثعالبی، عبدالجبار العتبی، بونصر مشکان، ابو الفضل «بيهقي» د کليله او دمنه خاوند نصر الله، ابو منصور موفق «هروی»، عبدالحی «گرديزی» فخر مدبر مبارکشاه، د کشف المحجوب ليکونکی او نامتو صوفي ابوالحسن هجويری غزنوی دی.

فردوسی، فرخی، عنصری، عسجدی، منچهري، سنائی، مسعود سعد سلمان، ناصر خسرو بلخی، اسدی طوسی، سيد حسن غزنوي، ابوالفرج رونی او مختاری غزنوی د دغه مهال نوميالی شاعران دي.

د يادونې وړ ده چې الپتگين او د هغه ځای ناستي چې د نومو په پای کښې يې د تگين کليمه راغلې ده هم د تگين شاهي سلطنتي کهاله ته منسوب دي. چې يو افغاني او ترکی گډ جوړښت دی.

# د سلجوقیانو او خوارزم شاهانو واکمنی

# او د سیستان د ملکانو لنډه یادونه

## ۴۲۹ هـ ۶۳۲ هـ

سلجوقیان د سیحون او ارال رود د شمالي ترکمانانو یو ټبر و چې د سامانیانو په وخت د بخارا شمالي لور او ماوراالنهر ته راغلي او اسلام یې منلی و.

سلطان محمود سهواً د سلجوقي ټبر څلور زره کورنۍ له جیحونه راپورې ویستی په خراسان کښې یې ترنیشاپوره ځمځایونه ورکړل خو همدغه خلک وروسته د غزنوي واکدار د پاره بلا وګرځیده او سلطان مسعود یې په ۴۹۲ هـ کښې مات کړ.

ځینې سلجوقي واکمنانو د ځینو غزنوي واکمنانو سره لکه سلطان ابراهیم غزنوي سره دوستي وساتله، د ۵۵۰ هـ په شاوخوا کښې غزان او قرخطایان نیمه وحشي قومونه د منځنۍ آسیا د غرو څخه راپیدا شو خو د غوریانو او خوارزم شاهانو له خوا له مینځه یوړل شو، پته دې پاتې نه وي چې په همدغه وخت کښې افغانستان په څلورو برخو ویشل شوی و، شمالي ولایتونو له تخارستانه تر مروی په سنجري او سلجوقي دربار اړه درلوده، غور، بامیان ګوزګان تر هراته په غوریانو، زابل، هلمند، کابل، غزنی، ننګرهار پېښور او لاهور پورې د محمود غزنوي د کورنۍ په واکمنې کښې وو او سیستان ولایت تر بست، زمینداور، زرنج تر فراه پورې د سیستان په ملکانو اړه درلوده.

دغو ملکانو د غوریانو، سلجوقیانو، غزنویانو او آن د چنګیز سره ښې اړیکې ساتلې. د ملک تاج الدین صفاري نسل آن تر زرو کلو پورې امیران پاتې وو.

# غوریان

## ۴۰ - ۶۱۲ هـ

سوریان د خراسان او غور د افغانانو یو تیر و چې تر اوسه هم د هرات شمال لویدیځ د بادغیس د زوراباد په شاوخواکښې د زوری په نامه استوګن دي. تر اسلام دمخه هم دغه کورنۍ د تخارستان، غور، هرات او خراسان په غرو کښې یې حکمرانی کوله او د غرشا په لقب یادیدل، ددی کورنۍ نومیالیو څخه یو هم شنسب د خرنک زوی دی چې د فخرالدین مبارکشاه له نسب نامی څخه د منهاج السراج په روایت د حضرت علی هم عصر او د هغه په حضور یې ایمان راوړی و. له شنسب څخه تر علاوالدین مسعود د شمس الدین محمد زوي پوری (۳۲) کسانو په افغانستان کښې کله په محدوده ساحه او کله په پراخه ساحه واکمنی چلولی ده.

د غوریانو پر وخت د غزنویانو د دوری مدنیت بشپړ تا به ته ورسید. د دری ژبی ادبیات د غوری فاتحینو پواسطه تر ډیلی پوری ورسیدل، پښتو ژبه هم د سوریانو په دربار کښې پالل شوی او د شعر او ادب ژبه شوه. د اسلام دین یې په ټول افغانستان او هند کښې خور کړ، صنعت او عمران وده وکړه چې د هرات جامع مسجد، د غور منار جام او د ډیلی قطب منار یې غوره بیلګی دي. علوم او فنون د غوریانو پر لوی هیواد کښې له نامتو پوهانو او شاعرانو سره وپالل شو او اسلامي مدنیت چې لودیانو او غزنویانو یې بنسټ ایښی و پوخوالی ته ورسید، د غوریانو درباری ژبی پښتو او دری وی.

# خوارزم شاهان

خوارزم یو زرغون، ودان او پیژندوی ولایت و چې د آمو له سینده اوبه کیده د اتیا فرسخو په شاو خوا کښې یې اوږدوالی درلود، پلازمینه یې گورگانج نومیده. باختر نه تر هجرت دمخه د آریایانو اصلی ټاټوبی و. خوارزمی ژبه نورو آریائی ژبو ته یوه نږدې ژبه ده. د ۸٦ هـ په شاو خوا قتیبه د مسلم باهلی زوی هغه ځای فتح کړ. د خوارزم شاهانو د کورنۍ لومړی موسس «کیخسرو» او د دویمی کورنۍ بنسټ ایښودنکی انوشتگین و. د سلطان محمد خوارزم شاه مشر زوی او وروستنی زړه ور پاچا بلال الدین «منکبرني» دی چې پر ٦١٧ هـ کال د خپل تښتیدلی پلار پر ځای کښیناست او د چنگیز له لښکریانو سره یې په میړانه جگړې وکړې، په پروان کښې یې د چنگیز زوم «قوتوقونوین» ته یې ماتې ورکړه. په هغه جگړه کښې چې د چنگیز سره یې د سند د اوبو پر غاړه وکړه مات شو ځان یې اوبو ته واچووه، د ملتان او کرمان له لاری پارس ته ولاړ د ٦٢٨ هـ د شوال په «۱۵» مه د کردانو له لاسه ووژل شو او دده په مړینه د خوارزمشاهانو لړۍ پای ته ورسیده.

# د خوارزمشاه وروستي ماتي اود چنگيز منځ ته راتگ

## ٦١٦ - ٦٤٠ هـ

د چنگيز د منځ ته راتگ په مهال د غزنوي او غوري کورنيو واکمني له منځه تللې وه د هيواد د شمالي سيمو واک د خوارزمشاهي دربار په لاس کښې و، په سيستان کښې د نيمروز سيمه ايزو ملکانو کمزوري حکومت چلاوه، د افغانستان ختيځې برخې هم د هغو اميرانو په لاس کښې وې چې د غور. سلاطينو تاکلي و، په هرات کښې هم کرت حکمرانانو د «آل کورت» حکومت کاوه.

په داسي حال کښې چې د هيواد ځواکونه پاشل شوي و پر ودان افغانستان او د هغه په پرمختللېو ښارونو باندې د آمو له هاخوا د چنگيز تاړاکگر يرغلونه پيل شول. چنگيزخان «تيموچن د يسوکاي بهادر زوي چې د قيات په ټبر کښې پر ٥٤٩ هـ کال زيږېدلی و» په ٦٠٠ هجري کال د ده د قيادت لاندې د منگوليا په قرا قرم کښې يوه لويه امپراطوري جوړه شوه، د سلو ميليونو په شاوخوا کښې منگوليايي وږي او وحشي ټبر د چنگيز تر کلکې اداري او خونړي تيغ لاندې دده فرمان ته لاس په نامه وو، خوارزمشاه چې د يوې خوايې د بغداد د خليفه ناصرالدين شاه سره دښمني درلوده او د بلې خوايې درباريانو د چنگيز سره ليکنې او رابطې کولې، د هيواد په چارو کښې د سلطان د مور «ترکان خاتون» له لاسه هم گډوډي او وراني راغلې وه نو د خوارزمشاهي دولت د نړيدو لاملونه له د ننه او بهر څخه برابر شوي و، کله چې خوارزمشاه تاتار تجارتي کاروان تالا او د چنگيز سفير يې وواژه نو چنگيز د دوه لښکرو سره د توپاني سيلاب په شان د خوارزمشاه په هيواد راوخوت په داسي زور او وحشت چې په تاريخ کښې يې ساري نشته پر اسلامي ودانو ښارو لکه بخارا، سمرقند، بناکت، خجند او د ماورا لنهر په نورو ښارونو يې يرغل وکړ دا ښارونه يې په خورا وحشت وران کړل او وگړي يې ووژل. (٦١٠ هـ).

په باميان کښې د چغتايي زوي موتوجن ووژل شو چنگيز له ډيره قهره باميان وران کړ او انسانان او څاروي يې له يوې مخې ووژل. چنگيز دا مدهشه بلا په کال ٦٢٤ هـ د روژې

په میاشت کښې د « ۷۲ » کالو په عمر د تنګت په دښته کښې مړ او ګڼ شیر خلک یې له وحشته خلاص شول. په ماورالنهر کښې استو ګنو چغتا یانو د افغانستان ولایتونه تخارستان، بلخ، میمنه، جوزجان، غرجستان، غور، هرات، باد غیس، سیستان، زابل، تر غزنی او کابل پورې اداره کول، دوی د یرش کاله هغه لوی ښارونه چې په آسیا کښې د ثقافت، مدنیت او اسلامي علومو مهم مرکزونه وو وران کړل، خلک یې په بیرحمی یو مخیزه ووژل او ستر کتابتونونه یې وسیزل ځکه نو د کلتور، مدنیت، صنایعو، پوهنو، تجارت او ادب بازار سوړ شو.

سره د دې چې په خراسان کښې د چنګیزیانو ګډ وډ یو او وینو تویولو پوهان مدرسین او کتابتونونه له منځه یوړل خو بیا هم په دغه دوره کښې داسې پوهان او شاعران وو چې اسلامي فرهنګ یې له خراساني تولنیز و ځانګړتیاو سره ساته، ځینې یې د وحشت او سفاکی له دغه ډګره د هند او روم ښارونو ته وتښتیدل. د چنګیزیانو په دوره کښې د یاسا (لیکل شوی قومی قاعدی) له مخې اجرات کیدل، د چنګیزی دورځینې مشهور اصطلاحات په دې ډول وو:

۱ - قورچی = وسله وال

۲ - اختہ چی = د آسونو ساتونکی

۳ - داروغه = د خاص قراول آمر

٤ - کشیکچی = ګارد

٥ - خاقان = پاچا

٦ - ترخان = عسکر افسر

۷ - هزاره = زرتنه

۸ - صده = سل تنه

۹ - قراول = کشاف

۱۰ - تمغا = مهر

۱۱ - تمغاچی = مهر ساتونکی

۱۲ - ایلچی = قاصد (استازی)

۱۳ - هریرلیغ = مهر شوی فرمان

د ٦۱٦ هـ څخه تر ٦٤۳ هـ پورې د چنګیز په ګډون شپږو تنو پر افغانسان واکمنی چلولې ده.

# د چنګیزیانو په وخت کی د کرت او لاده او افغانی امیران
## ۶۰۰ - ۷۸۳ هـ

پر ټول افغانستان او یا د هغی پر ځینو برخو له (آل کرت) څخه ۱۳ تنو واکمنی کړیده. آل کرت علم دوسته، فاضل پالونکی او عمران خوښی پاچاهان وو، د دوی پر وخت د چنګیزیانو د چور او چپاول سره، سره علم، ادب او صنعت ښه وده وکړه، د دوی دربار د پوهانو او شاعرانو د راغونډیدو ځای و، د ربیعی پوشنجی کرت نامه، د تفتازانی مطول، د هرات تاریخ، د سفی هروی مجموعه یې غیاثي از سامنامه او د امیر حسینی غوری نزهة الارواح او دارالمسافرین د ال کرت د دربار له مشهورو کتابونو څخه و.

ددی کهول ډیر مشهور پاچا هماغه شمس الدین مهین وچې تر غوریانو وروسته یې د هیواد یووالی بشپړ کړ، سره له دې چې دغه ویر لیدلی هیواد د چنګیزیانو له لاسه ډیر مادی او مانیز تېونه لیدلی وو، خو بیا هم دغه ننګیالی پاچا پر هغو تپو د سیاسی یووالی د ملهم پټی کیښوده، شمس الدین مهین ټول افغانستان د هرات تر مرکزیت لاندی راوست، څرنګه چې چنګیزی شهزاد ګان له ده څخه په ویره کښې وو، نو اصفهان ته یې وغوښته په (۶۷۶ هـ) کال یې په تبریز کښې زهر ورکړل او ویې واژه.

# د هرات تیموریان

## له (۷۷۱ - ۹۲۰ هـ) شاوخوا پورې

تیمور د ترغای زوی د چنګیز کهاله ته منسوب په ۷۳۶ هـ د برات په میاشت کښې زیږیدلی په ۷۶۱ هـ شهرت ته ورسید او د نړۍ د سترو خونړیو پاچا هانو څخه و، تیمور د خپل ژوندانه تر پایه ۳۵ ځله له چینه تر مصره له ډیلی تر استانبوله او مسکو پورې لښکرې وویستی او وینی یې وبهولی. دده په لاس د افغانستان هغه ښارونه چې د چنګیز د چور او چپاول وروسته د آل کرت په وخت کښې بیرته ودان شوي وو، بیا وران شول او په کنډوالو بدل شو. تیمور د ورانیو او لوی امپراطورۍ تر جوړولو وروسته په (۸۰۷ هـ) د (۷۱) کلنی په عمر مړ او په سمرقند کښې ښخ شو شاه رخ د تیمور زوی ه (۸۰۷) هـ پر تخت کښیناست دی د ختیځ له لویو، علم دوستو او عمران خوښوونکو پاچاهانو څخه دی تر شلو کالو زیاته یې په هرات کښې پاچاهي وکړه، په افغانستان کښې د چنګیزي او تیموري تولو فتوحاتو په زخمونو یې مرهم کښیښول، ښکلي ودانۍ، مدرسي او خانقاوي جوړي کړي چې تر اوسه یې هم نښې نښانې شته، دده او ملکې ګوهرشاد نومونه په علم دوستي، ادب پالنه، ودانۍ او عدالت مشهور دي. په هند کښې هم د شاه رخ په نامه خطبه ویل شوې او سکه وهل شوې وه.

شاه رخ د سیحون نه د عرب تر بحیرې او د فارس له لویدیزو څنډو د سند د سیند تر غاړو پورې په یوه ارت هیواد په بری سره واکمني درلوده، بالآخره په (۷۱) کلنی عمر په (۸۵۰ هـ) د ذوالحجې په میاشت کښې په ری کښې مړ شو.

د تیموریانو د لړۍ بل مشهور پاچا سلطان حسین «بایقرا» دی چې د مشهور وزیر امیر علي شیرنوایي په مرسته یې د علم او ادب په برخه کښې ستر کارونه سرته ورسول د دوی په دور کښې ستر شاعران، تاریخ پوهان، نقاشان، او ادیبان منځ ته راغلل، استاد بهزاد هم په دغه دوره کښې ژوند کاوه په تیموري کهول کښې او تیمور څخه تر سلطان حسین پورې اوه کسانو د پاچاهي په تخت خپل بخت ازمویلی دی او خپل کورنی ته یې کله نفرت او کله رحمت ګټلی دی.

# د کونړ حکمرانان او یوسفزیان

## له ۸۰۰ - ۹۰۰ هـ پورې

د ۸۰۰ هـ په شاوخوا کښې چې پر افغانستان د تیموریانو یرغلونه روان وو د کونړ پر درو یوې سیمه ییزې کورنۍ حکمرانی کوله چې حکمران یې سلطان باله او د کونړ د پیچ په دره کښې یې مرکز درلود او کلیوالو افسانو دوی د ذوالقرنین اولاد گڼل. د ځینو حکمرانانو د واکمنۍ په سیمو کښې لغمان، ننگرهار، باجوړ، سوات، پیښور، هزاره ضلع او کشمیر هم شامل وو، ددې کورنۍ حکمرانان دغه کسان وو.

۱ - سلطان پکهل د کونړ د کهجامن زوی او د هندو لمسی د (۸۰۰ هـ) شاوخوا.

۲ - بهرام د کهجامن زوی د ۸۱۰ هـ شاوخوا.

۳ - سلطان تومنا د ۸۱۵ هـ شاوخوا.

٤ - ملک احمد یوسفزی د ۸۱۵ هـ شاوخوا.

۵ - شیخ آدم ملی د یوسف زوی د ۸۲۰ هـ شاوخوا.

٦ - کجوخان رانی زی د ۹۰۰ هـ شاوخوا.

۷ - شاه منصور ملک سلیمان زوی د ۹۱۰ هـ شاو خوا.

۸ - سلطان ویس سواتی د ۹۱۰ هـ شاوخوا.

۹ - سلطان علاوالدین سواتی د ۹۱۰ هـ شاوخوا.

۱۰ - تاوس خان د ۹۱۰ هـ شاو خوا.

# د هند تيموريان

## د ۹۱۰ - ۱۱۵۱ هـ

د هرات د تيموريانو د دوری په پای ظهور الدين محمد بابر د عمر شيخ ميرزا زوی او د هرات د پخوانی سلطان ابو سعيد گورگان لمسی د ۸۹۹ هـ د روژی په مياشت کښې د فرغانی په اندی جان کښې د يوولس کلنۍ په عمر پر تخت کښيناست، بابر د مور او پلار له خوا چنگيز او تيمور ته منسوب و، سره ددې چې بابر کوچنی و خو پاچاهی يې وساتله، بابر تر ۹۰۹ هـ پوری د محمد شيبانی سره جگړه وکړه او چې خپل حريف يې غښتلی وليد افغانستان ته يې مخه کړه او له جيحونه راپوری ووت. د بدخشان او کندوز د حکمران خسرو د لښکرو او مالونو د خپلولو نه وروسته يې کابل ته مخه کړه، بابر د پراخ افغانستان د مختلفو سيمو د نيولو د پاره يې ډېری جگړی وکړی، په هندو يې بريدونه وکړل او په پنځم ځل بريد کښې يې په ۹۳۲ هـ د پانی پت په جگړه کښې سلطان ابراهيم لودي وواژه او پخپله د ډيلی په تخت کښيناست، تر هغې وروسته کابل، بدخشان او کندهار له ډيلی څخه د بابر له خوا اداره کيدل، د افغانستان په تاريخ کښې بابر نوميالی، زړه ور، خونړی، پوه او مولف پاچا و چې پر بلخ، بدخشان، کابل او کندهار يې تر ډيلی پوری په يو لوی هيواد حکومت کاوه، ده په فارسی او ترکی ژبو شعر وايه شو مهم تاليفونه هم لری.

په ۹۳۷ هـ په جمادی الثانی کښې په اگره کښې مړ او د ده يو وصيت سره سم د کابل په بابر باغ کښې ښخ شو. د بابر تر مرگه، وروسته د ده زوی همايون په تخت کښيناست خو د يو نابغه هوښيار پښتون فريد خان مشهور په «شيرشاه»

چې د لودی کورنی څخه و د ډیلی تخت له همایون څخه بیرته ونیو خو د بابر اولاده د هغه د ارت هیواد په مختلفو سیمو کښې واکمنی درلوده تر څو چې پر ۱۱۵۱ هـ کښې نادر افشار تر ۲٤۰ کالو پاچاهي وروسته د بابر د کورنی د اقتدار کمبله د افغانستان څخه تموله کړه. په افغانستان کښې د بهرنیانو د دغو دوه نیمو پیړیو د ورانیو انځور ډیر دردوونکی و او هغه څه چې د چنګیز او تیمور د تاړاک وروسته د هرات د تیموریانو دولت جوړ کړی او د مدنیت، صنعت او ادب آثار یې منځ ته راوړی وو، هغه پر دغه مهال وران شول، خو همدا پیر د افغان ملت له خپلواکۍ غوښتنې او له وطن سره د مینی لرلو د حس خورا ښه ښکارندوی دی چې دوه نیمې پیړۍ د دری مدهشو قوتونو سره وجنګید او پردې قوتونه یې پرینښودل چې د دوی په هیواد پر خوښۍ او آرامۍ واکمنی وکړی.

دا وخت د ډیلی تیموری پاچا هانو په کابل او کندهار کښې، صفوی پاچاهانو په هرات او سیستان او تورانی پاچاهانو په بلخ او بدخشان کښې سکه وهله، په دې وخت کښې د پردیو پروړاندی د افغانانو کرکه زیاته وه په پښتو ژبه ډیر ارزښتمن آثار ولیکل شول، پیروښان او خوشحال خان ددی قافلی مخکښان وو. په افغانستان کښې د ډیلی د تیموریانو د واکمنۍ په وخت کښې د زمانی په غوښتنه زیات شمیر علمی او ادبی شخصیتونه رامنځ ته شول په افغانستان کښې د هند د تیموریانو دغو کسانو واکمنی درلوده.

۱ - بابر (۹۱۰ - ۹۳۷ هـ).

۲ - همایون د بابر زوی (۹۳۷ - ۹۶۳ هـ).

۳ - جلال الدین محمد اکبر د همایون زوی (۹۶۳ - ۱۰۱٤ هـ)

٤ - جهان ګیر د اکبر زوي (۱۰۱٤ - ۱۰۳۷ هـ).

۵ - شاه جهان د جهانګیر زوی (۱۰۳۷ - ۱۰۷۶).

۶ - اورنګزیب د شاه جهان زوي (۱۰۷۶ - ۱۱۱۸ هـ)

۷ - معظم شاه د عالمګیر زوی د (۱۱۱۸ - ۱۱۲٤ هـ)

# روښانیان

## ( ۹٤٠ - ۱٠۷٤ ) هـ

د غوریانو او سوریانو چې افغانان او د افغانی برم ساتندویان وو، دور په بې ساری برم او پرتم تیر شو، د چنګیز وحشیانه یرغلونو دا برم ونړاوه، خو افغانانو هغه هیر نکړ او په هند کښې بیا د لودیانو، سوریانو، خلجیانو او نورو د پاچاهۍ په جوړولو لاس پوری کړ، خو د چنګیز او تیمور اولادې پرینښود چې د افغانستان او خراسان خاوره بیا سیاسی یووالی ومومی بابر چې د هماغه توکم سړی و، هماغه یې وکړل چې نیکونو یې کړی وو. په دغو شلورو سوو کالو کښې د افغانانو په غرو کښې داسی میړني وزیږیدل چې د افغانی تاریخی برم د راګرځوولو لپاره یې له خونړیو پاچاهانو سره ډغری ووهلی، نو ددغو نومیالیو څخه بایزید مشهور په پیر روښان دی. دی د قاضی عبدالله زوی د محمد لمسی دی ده ته یې سراج الدین او میا مسکین هم وایه، تر کندهار، هند، ماورالنهر او سمرقند پوری یې سفرونه وکړل، متداول علوم یې زده کړل، په ادب، فلسفه او تصوف کښې یې مطالعات وکړل. لوی زاهد او پرهیز ګار سړی و، صراط التوحید، حالنامه، خیرالبیان او مقصود المومنین کتابونه یې لیکلی، په پښتو، فارسی، عربی او هندی ژبویې لیکنی کړی، بایزید د افغانانو د مظلومیت حال ته ځیر شو او د هندی واکمنانو ظلمونه یې ونه زغملای شول او د پردیو په پروړاندې یې د جهاد اعلان وکړ چې په کابل او پیښور کښې یې د ډیلی حکمرانان وویرول، مخالیفینو اخون درویزه د هغه په مقابل کښې د خلکو د غولولو لپاره منځ ته راوست چې په دی توګه بایزید د ولسونو په منځ کښې تجرید کړی، خو دې عالم، فاضل او پر وطن مین شخصیت د ډیلی له حکمرانانو سره سختی جګړی وکړی، تر څو (۹۸۸ هـ) په شاوخوا کښې د (٥٦) کالو په عمر د تور راغه په جګړه کښې شهید شو. څه ناڅه تر یوی پیړی پوری د بایزید روښان د کورنی د مجاهدی رڼا روښانه پاتی شوه ددې کورنی نومیالی دا کسان وو.

۱ - بایزید روښان د عبدالله او رمر انصاری زوی ( ۹٤۹ - ۹۸۸ هـ ).

۲ - جلال الدین د بایزید روښان زوی د (۹۸۸ - ۱٠٠۹ هـ).

۳ - احداد د شیخ عمر زوی او د بایزید لمسی (۱٠٠۹ - ۱٠۳٥ هـ).

٤ - عبدالقادر د احداد زوی ( ۱٠۳٥ - ۱٠٤٤ هـ).

# توخی

## ۹٦۰ - ۱۲۰۰ هـ

د غلجیو افغانانو یو ټبر چې په زابل د ترنک او ارغنداو پر غاړو د کلات په غره کښې د مقر تر بریدونو او سیږي، توخي نومیږي. د ډیلي تیموریانو او د ایران د صفویانو په وختو کښې د توخیو یوه کهاله د غو شاهینشاهیو په منځ کښې خپل واک ساته.

نومیالی توخي

۱ - شاه محمد کلاتی د ( ۹٦۰ هـ شاوخوا ).

۲ - سلطان ملخی د ( ۱۰۹۰ هـ شاوخوا ).

۳ - حاجي عادل د ملخي زوی د ( ۱۱۰۰ هـ شاوخوا ).

٤ - بای خان د عادل زوی د ( ۱۱۱۵ هـ شاوخوا ).

٥ - شاه علم خان مشهور په « ښالم خان » د علی خان زوی د ( ۱۱٥۰ هـ شاوخوا ).

٦ - اشرف او الله یار د شاه علم زامن د ( ۱۱٦۰ هـ شاوخواه ).

۷ - اموخان د اشرف زوی د ( ۱۲۰۰ هـ شاوخوا ).

# ابدالیان

## ٤٤۰ - ۱۱٤٤ هـ

د افغانستان او هند په تاریخ کښې ابدالیان نامتو ټبر دی چې د نامه ریښه یې د ( ٤۰۰ م) شاوخوا سپین پوستی ټبر ته چې ابتل نومیده ، رسیږي ، دې ټبر په باختر او تخارستان کښې یو غښتلی دولت جوړ کړ ، چې د کندهار له ابدالیانو څخه د ملک ابدال د ترین د زوی څخه تر رستم خان دولت ترزوی پوری « ۱٥ » کسانو په اړوندو سیمو کښې حکمرانی کړې ده او د هرات له ابدالیانو څخه « ۷ » کسه واکمنان تیر شوی دي چې په مجموعی ډول « ۲۲ » کسانو ته رسیږي چې د ( ٤٤۰ هـ - ۱۱۱۹ هـ) پوری واکمنان پاتی شوی دی.

# هوتکیان

## ۱۱۲۰ - ۱۱۵۰ هـ

د افغانستان په تاریخ کښې د هوتکو د حکمرانۍ دیرش کلن پیر د خپلواکۍ غورځنګ د راپاریدو له امله خورا غوره پیر دی، ځکه چې په دغه پیر کښې ځو واره پر له پسې په کندهار کښې د داخلي او ملي حکومت بنسټ کیښودل شو، چې وروسته بیا احمد شاه بابا پر هغه بنسټ د افغاني سلطنت ماڼۍ ودانه کړه. دې دورې افغاني ولس نړۍ ته په زړه ور توب وروپیژانده، پخپله میرویس خان غښتلی او ملي شخصیت درلود، د پوهې او پښتني روزنې په غیږ کښې پالل شوی و.

مور يې «نازو» د سلطان ملخي توخي لور عالمه او شاعره میرمن وه چې پټې خزانې ددې او د میرویس خان د لور «زینبې» پښتو شعرونه راوړي دي.

نومیالي هوتکیان:

۱ - میرویس خان د شالم خان زوی (۱۱۱۹ - ۱۱۲۷ هـ).

۲ - عبدالعزیز د شالم خان وی (۱۱۲۷ - ۱۱۲۹ هـ).

۳ - شاه محمود د میرویس خان زوي (۱۱۲۹ - ۱۱۳۷ هـ).

٤ - شاه اشرف د عبدالعزیز زوي (۱۱۳۷ - ۱۱٤۲ هـ).

۵ - شاه حسین د میرویس زوی (۱۱۳۵ - ۱۱۵۰ هـ).

# سدوزیان
## ۱۱۶۰ - ۱۱۵۸ هـ

نادرشاه د امام قلی افشار په (۱۱٤۸ هـ) له ایرانه راغی، د هوتکو پاچاهی او په هرات کښې د ابدالیانو حکمرانی یې رنگه کړه په تیره بیا د کندهار په نیولو یې د هوتکو پاچاهی بیخی پای ته ورسوله، نادر شاه چې یو زړه ور، هوښیار او خونکار سړی و، په ډیره ځیرکتیا له افغانی مشرانو سره د نرمۍ لار واخیسته ځینی حکومتونه یې هغوی ته وسپارل، نږدی څلویښت زره زړه ور جنگیالی افغانان یې د نورمحمد خان غلجی (په میر افغان مشهور) په مشرۍ پخپل لښکر کښې داخل کړل، ډیری جگړې او فتوحات یې وکړل.

او په (۱۱۵۳) هـ) کښې یې د خپلو فتوحاتو جشن چې له ماورالنهر او خوارزم څخه نیولی، د سند تر سینده، د جله، فرات او سیحون پوری رسیدل، په مشهد کښې جوړ کړ.

احمد خان ابدالی یې له مازندران څخه راوغوښت او د ابدالی لښکر په مشرۍ یې خپل همرکاب کړ چې د ارغستان او ایران په جنگی سفرونو کښې د نادر شاه ملگری و، د نادر ځانگړی پاملرنه یې ځانته راواړوله او هغه به له ځان څخه وروسته پرده باندی د پاچاهۍ زیری کاوه د « ۱۱۶۰ هـ » د دریمې خور په « ۱۱ » مه د یک شنبی په شپه نادر د خبوشان په فتح اباد کښې د خپلو څه نا څه « ۷٤ ) تنو دربارایانو له خوا ووژل شو.

د نادر شاه تر وژلو وروسته احمد خان ابدالی او نور محمد خان « میر افغان » د افغان او ازبکو، سپاهیانو په مرسته د نادرشاه کورنی د لوټ او تاړاک څخه وژغورله د دغه خدمت په بدل کښې د نادر د کورنۍ له خوا د « کوه نور » مشهور

الماس ورکړ شو.

وروسته نو افغاني قوا او مشران بيرته هرات او بيا کندهار ته راغلل، لويه جرگه جوړه شوه او د جرگې په نهمه غونډه کښې احمد خان د افغانستان مشر وټاکل شو، چې تفصيل يې مخکې تير شوی دی.

## سدوزي پاچاهان:

١ - احمد شاه بابا ابدالی د زمان خان زوی ( ١١٦٠ - ١١٨٦ هـ).
٢ - سليمان د احمد شاه زوی (١١٨٦ - هـ).
٣ - تيمور شاه د احمد شاه زوی (١١٨٦ - ١٢٠٧ هـ).
٤ - زمان شاه د تيمور شاه زوی ( ١٢٠٧ - ١٢١٥ هـ).
٥ - شاه محمود د تيمور شاه زوی ( ١٢١٥ - ١٢٤٥ هـ).
٦ - شاه شجاع د تيمور شاه زوی (١٢١٨ - ١٢٥٨ هـ).
٧ - فيروز الدين د تيمور شاه زوی ( ١٢٣٠ هـ) شاوخوا په هرات کښې
٨ - کامران د شاه محمود زوی ( ١٢٣٤ - ١٢٤٥ ) په هرات کښې.

# محمد زايان

## له ۱۲۱۶ - ۱۳۵۷ هـ، ش

محمدزي د کندهار د بارکزيو درانهو يوه پښه ده د دوي پخواني نيکه «محمد» د کندهار د ابداليانو د ټبرونو د حکمران ملک سيدو همعصر و چې د «۱۰۰۰» پرشاوخوا يې د کندهار جنوب ختيځ خواته په ارغستان کښې له خپل کوچني ټبر سره ژوند کاوه.

محمد د عمرزوي و، د دارو او بارک په ټبر پوري چې د سړبن ابدالي پښتنو يوه څانگه ده اړه لرله. د محمد نيکه مزار اوس هم د کندهار په ارغستان کښې دی.

د محمد اولادې د بارکزيو ټبر به منځ کښې د رياست مقام لاره چې مرکزيې د بارکزيو ناوه گرشک و چې د هيلمند پر غاړه پروت دی. تر اوسه هلته دادې کلا شته دا ددغه کهاله پخواني ځای دی. لکه چې مخکې ورته اشاره وشوه، د شير سرخ په جرگه کښې چې د پاچا د ټاکلو لپاره جوړه شوی وه، د دغه ټبر مشر حاجي جمال خان د حاجي يوسفزوي د يارو لمسی او د محمد کړوسی هم گډون کړی و، هغه وروسته د احمد شاه په دربار کښې مشاور گڼل کيده چې پر (۱۱۸٤ هـ) مړ او د کندهار په سويل د «ذاکر» په کلي کښې ښخ شو، تر ده وروسته سردار پاينده خان د کندهار په سويل کښې له ارغستانه د هلمند د بارکزيو د ناوي پوري د بارکزيو د قبيلې د مشر په توگه وپيژندل شو.

تيمورشاه سدوزی ده ته لوی منصبونه ورکړل د تيمور شاه تر مړيني وروسته دده د زامنو تر منځ مخالفتونه او جنگونه شروع شول، د تيمورشاه زوی زمانشاه سردار پاينده محمد خان په (۱۲۱٤ هـ) د روژې په (۱۳) مه په کندهار کښې وواژه، پاينده خان شل تکړه زامن درلودل چې په افغانستان کښې خواره شول، د پاينده خان مشر زوی سردار فتح خان له کندهار څخه ايران ته د زمان شاه مخالف ورور شاه محمود ته پناه يوړه. همدا چې شاه محمود د کابل پر تخت کښيناست، سردار فتح خان محمدزي يې خپل وزير

وتاکه، فتح خان چې پوره واک يې درلود خپل وروڼه يې د افغانستان پر ولاياتو واکمن کړل، يوازې دوست محمد خان يې له ځان سره په مرکز کښې وساته، خو په « ۱۲۳٤ هـ » کال وزير فتح خان د شاهزاده کامران د شاه محمود د زوی په لاس ړوند کړای شو، چې دغې پيښې بارکزي وروڼه غچ اخستو ته اړ کړل او سخت اړود وړ پيل شو، وروسته تر هغه چې د سدوزيو د کهاله تغر يې ټول کړ، د وزير فتح خان د ورونو تر منځ هم د پاچاهي پر سر شخړې راوزيږيدې، تر هغې چې سردار دوست محمد خان د کابل په عيدگاه جومات کښې خپل امارت اعلان او د کابل د امير په توگه يې په نامه خطبه ولوستل شوه. (۱۲۵٤ هـ).

شاه شجاع سدوزی چې په لوديانه کښې فراري و، هيڅ ډول حقوقي او رسمي حيثيت يې نه لاره، له انگريزانو او رنجيت سنگهـ سره يې په (۱۸۳۳ م) په مارچ کښې يو تړون لاسليک کړ انگريزانو او رنجيت سنگهـ ته يې د ډيرو امتيازاتو په ورکولو د ۱۲۵۵ هـ له جمادي الاخر « ۲۳ » مه شاه شجاع يې په کابل کښې په پاچاهی کښيناوه او امير دوست محمد خان له خپلو زامنو سره بخارا ته ولاړ.

افغانانو چې هيڅکله يې د پرديو واکمنی نه ده منلی، نو د ميکناټن او د انگريزانو د لاس پوڅی شاه شجاع پر ضد يې عمومي پاڅون وکړ، امير دوست محمد خان هم له بخارا څخه کوهستان ته رارسيدلی و، سپينه پگړۍ په سر او شين بيرغ په لاس او انگريزانو سره جنگيده، انگريزان ډير وارخطا او د افغانانو بری حتمی ښکاريده، خو امير په کوم علت روحيات بايلل او ځان يې انگريزانو ته وسپاره هغوی له خپلی کورنۍ سره هند ته واستاوه.

کله چې سردار محمد اکبر خان ميکناټن ووژه او له بلی خوا له انگريزی پوځ څخه يوازې ډاکتر برايډن ژوندی جلال آباد ته ورسيد او نور يې د غازيانو له لاسه تباه شول، نو د هيواد په هره برخه کښې خلک د انگريزانو پر ضد راپاڅيدل، شاه شجاع چې له ويری يې په ظاهره ځان ملی مجاهدينو سره ملگری باله په پټه يې د انگريزانو په گټه فعاليت کاوه او د جهاد په چارو کښې يې د ناغيړی څخه کار اخيستنو (۱۸٤۲) کال د اپريل په « ۱۳ مه » د مجاهدينو له خوا ووژل شو او د تيمور شاه په اديره کښې يې ښخ کړ.

د قوم مشرانو فتح جنگ د ده زوی پاچا کړ، خو دده پاچاهی دوام ونکړ، د لږ وخت لپاره دده ورور شاهپور پاچا شو، بالآخره انگريزان مجبور شول، چې امير دوست محمد خان ته د دويم ځل لپاره ميدان پريږدی امير دوهم ځل « ۲۱ » کاله حکومت وکړ، په

(۱۲۷۹ هـ) د ۷۲ » کالو په عمر په هرات کښې وفات شو او د خواجه عبدالله انصاري په ادیره کښې خاوروته وسپارل شو.

د امیر دوست محمد خان له وصیت سره سم دده د مړینې وروسته امیر شیرعلي خان (۱۲۷۹) کښې د افغانستان امیر شو. دده د پاچاهي لومړی دری کلنه دوره د خپلو ورونو په جګړو کښې تیره شوه، دده وراره عبدالرحمن خان په (۱۲۸۳ هـ) کال خپل پلار محمد افضل خان قدرت ته ورساوه چې یونیم کال وروسته مړ شو او محمد اعظم خان د خپل وراره عبدالرحمن په ملاتړ امیر شو، یو کال وروسته امیر شیرعلي خان له محمد اعظم خان څخه بیرته کابل ونیوه امیر شیرعلي خان د خپل دانشمند وزیر سید نور محمدشاه په همکارۍ په هیواد کښې پرمختیای چاری شروع کړی، د پرمختګ او عمران دوره شروع شوه، خو د روسانو اوانګریزانو مداخلو ډیر کړاو پیدا کړی و، په (۱۲۸۸ هـ) (۱۸۷۲ ز) د هلمند د اوبو په ویش کښې د انګریزانو د حکمیت پریکړه داسی اعلان شوه: «چې بی له کوم تاریخي او حقوقي حق څخه د کوز هلمند په اوبو کښې نږدی پنځوس میله سور کښې یې ایران شریک کړ. » او په دې ترتیب یې د همیشه لپاره دوه ګاوندیو مسلمانو ملتونو په منځ کښې د شخړی او دښمنۍ تخم وشینده.

امیر شیرعلي خان د انګریزانو د تیری پر وړاندې له روسانو څخه د مرستی اخستو په هیله مزار ته ولاړ چې دغسی یو نامعقول حرکت له داسی پوه او مدبر پاچا څخه بیخی د منلو وړ نه دی، د روحی فشارونو له امله د « ۱۸۷۹ ز ) کال د فروری په میاشت کښې هم هلته مړ شو او یعقوب خان د ده زوی په کابل کښې پر تخت کښینول شو، هغه له انګریزانو سره په (۱۸۷۹ز) کال د می په « ٦ » مه د ګندمک شرمیدلی تړون لاسلیک کړ. دا پلا انګریزان یو کال او دوه میاشتی په افغانستان کښې پاتی شول. د انګریزانو پر خلاف د جهاد نامتو څیری محمد ایوب خان، ملا مشک عالم، محمدجان خان وردک او ملا عبدالغفور «لنګری» وو.

په داسی حال کښې چې د کابل په شاوخوا کښې خونړۍ جګړې روانی وې سردار عبدالرحمن خان له سمرقند نه افغانستان ته راغی، انګلیسان چې په سره اور کښې ولاړ وو، هغه ته یې د امارت بلنه ورکړه، عبدالرحمن خان د (۱۲۹۱ هـ) د شعبان په میاشت کښې د (۱۸۸۰ ز) د جولای په « ۲۱ » د امارت اعلان وکړ.

عبدالرحمن خان په ملک کښې ګڼواکی له مینځه یوړه، ملي وحدت یې ټینګ کړ، د

نورستان خلک یې مسلمانان کړل، «روسانو» او «انګریزانو» له نیرنګو سره ګیر و او د چا خبره د خرس او لیوه تر منځ ایسار شوی و. روسانو ور څخه پنجده ونیوله او انګریزانو پرې د ډیورنډ معاهده لاس لیک کړه. (۱۸۹۳ ز).

په (۱۹۰۱) ز په باغ بالا کښې د نقرس په ناروغۍ مړ او په زرنګار پارک کښې خاورو ته وسپارل شو.

د ده د مرګ وروسته د ده مشرزوی امیر حبیب الله پر تخت کښیناست د ده په دوره کښې د کورنی امنیت له پلوه آرامي وه امیر حبیب الله خان په ټول هیواد کښې وګرځید، د پغمان د اوبو نل او د جبل السراج برېښنا د ده په وخت کښې کابل ته راوستل شوه، د حبیبي او حربي ښوونځیو جوړول، د سراج الاخبار خپریدل، د څو روغتونو جوړول، د اوبدلو او څرمنو د فابریکو جوړول، د کابل، کندهار او کابل، جلال آباد د سړکونو جوړیدل او د څو عصري ودانیو جوړیدل د ده د دورې ستر کارونه دي. د لومړۍ نړیوالې جګړې په پیل کښې یې انګریزانو څخه وعده واخستله چې د جګړې په پای کښې به د افغانستان خپلواکي په رسمیت وپیژني، مګر نوموړی امیر ته اجل مهلت ورنکړ په «۱۹۱۹ ز» د حوت په لومړۍ نیټه د لغمان د کله ګوش په ښکار ځای کښې په مرموز ډول سره ووژل شو او د جلال آباد په ښار کښې سراج العمارت ته نږدې خاورو ته وسپارل شو، امیر حبیب الله خان سړی له دي چې هوښیار او باتدبیره سړی و خو واکمني یې لکه د نورو په شان بې ستونزو او اشتباهاتو نه وه.

کله چې حبیب الله خان مړ شو، نو ورور یې سردار نصر الله خان چې نایب السلطنه هم و، په جلال آباد کښې خپله پاچاهي اعلان کړه، خو سردار امان الله خان د پلار د ریم زوی سلطنت خپل حق ګاڼه، د هماغه کال د حوت په نهمه یې په کابل کښې خپل سلطنت اعلان کړ او نصر الله خان یې بندی کابل ته راوست. د نړیوالې جګړې ګټونکي قوت «انګریزانو» د افغانستان د خپلواکۍ د منلو پر موضوع سترګی پټی کړی. د افغانانو او انګلیسانو جګړه په دریو محاذونو کښې ونښته، په ختیځ محاذ کښې سپه سالار صالح محمد خان ماتې وخوړه، د کویټې په محاذ کښې لښکرۍ او ملی مجاهدین د دفاع په حال کښې و او د پکتیا په محاذ کښې د سپه سالار محمد نادر خان په مشرۍ قواوو بریالی پرمختګ کاوه او ټل او وانه یې ونیول، انګریزان مجبور شول چې د افغانستان خپلواکي په رسمیت وپیژني، په کابل کښې په ۱۲۹۸ هـ، ش کال د محمد نادر خان د فتحې په

ویاړ ځلي جوړ شو.

غازي امان الله خان اروپا ته سفر وکړ، کله چې هیواد ته بیرته راستون شو، غوښتل یې چې دده هیواد هم په لنډه موده کښې د اروپايي مملکتونو په شان مترقي او آباد شي. خو د پاچا ددې پلانونو عملي کولو د پاره د ډیرو پوهو، منورو او زړه سواندو خلکو ضرورت وو حال دا چې هغه وخت داسې کسان ډیر لږ پیدا کیدل، پاچا په داسې حال کښې چې خپل محیط یې سم نه و پیژندلی، ملي دودونه او رواجونه یې په نظر کښې نه و نیولي او هیواد دده د پلانونو عملي کولو د پاره اماده نه و، د خپلو انقلابي پروګرامونو عواقبو ته یې پاملرنه ونه کړه او په احساساتي ډول یې په بیړه پرمختګ غوښت. محمود «طرزي» چې پوه او عالم شخصیت و د دربار د غوړه مالانو له خوا له پښو غورځول شوی و، ځینو درباریانو خو په لوی لاس داسې کارنو ته لمن وهله، چې پاچا پرې بدنام شي او انګریزان هم غلي نه وو ناست، همدا عوامل وو چې یوه ورځ ټول خلک راوپاریدل او امان الله خان یې د خپلو انقلابي پروګرامونو سره په مخه کړ.

د «۱۳۰۷ هـ،ش» کال د نیمائي په دوهمه برخه کښې د مرکزي حکومت د بدې اداری، د ولسوالانو د ناوړه کارونو، د ځینو لویو مامورینو له خیانتونو او بالآخره د پردیو د لمسونو په نتیجه کښې حبیب الله «بچه ء سقاو» ته د کابل تخت ورسید.

لومړی په ننګرهار کښې د فتنې اور بل شو او ډېر ژر یې ټول هیواد ونیو د «۱۳۰۷ هـ، ش» د جدی په میاشت کښې امان الله خان استعفی وکړه او نه میاشتی د غلو او داړه مارانو په ملګرتوب. د سقاو زوی په افغانستان حکمراني وکړه.

د هیواد تمدن او پرمختګ په ټپه ودرید. سپه سالار محمد نادر خان چې د فرانسي او بروسل له سفارتونو څخه یې استعفا کړی وه. د هیواد له ګډوډ حالت څخه خبر شو له خپلو ورونو سردار شاه ولي خان، او سردار شاه محمود خان سره وطن ته راغی او وطن یې د سقاویانو له لاسه وژغوره. د افغانستان خلکو سپه سالار محمد نادر خان د خپلو خدمتونو په بدل کښې د پاچاهی د پاره غوره کړ. اعلیحضرت محمد نادر شاه د سردار محمد یوسف خان زوی د سردار یحی خان لمسی او د سلطان محمد خان کړوسی دی. د مور له خوا د اعلیحضرت دوراني احمد شا ه له کورنی څخه دی او د پلار مور یې د غازي وزیر اکبر خان لمسی وه.

د اعلیحضرت محمد نادرشاه د سلطنت شروع ذ مملکت د لوړتیا او پرمختګ یوه بله

دوره وه د «۱۳۱۲ هـ. ش» کال د عقرب په «۱٦» مه نیټه په داسې حال کښې چې د معارف شاګردانو ته یې جایزې ویشلې د عبدالخالق نومي لخوا شهید شو.

د نادرخان د مرګ نه وروسته شاهزاده محمد ظاهر د المتوکل علی الله د لقب په غوره کولو پاچا شو، دده د واکمنۍ دوره د افغانستان د نهضت او تحول دوره وه په مقایسوي ډول د ظاهرشاه دوره په بشري، اجتماعي، عرفاني، سیاسي، حقوقي او مدني چارو کښې د تحول او تجدد دوره وه، چې ځینو بیلګو ته یې د اساسي قوانینو په څېر کې کښې اشاره شویده. په ۱۳۵۲ هـ. ش کال د چنګاښ په میاشت په داسې حال کښې چې محمد ظاهرشاه د ایټالیا په روم کښې د خپلو سترګو په علاج لګیا و د سردار محمد داود لخوا پرې کودتا وشوه او دده پاچاهي پای ته ورسیده.

داود خان په افغانستان کښې جمهوري نظام مینځ ته راوړ او جمهوري اساسي قانون یې جوړ کړ. په مجموعي ډول داود خان وطنپرست او پاک سړی و درباري تجملات یې نه خوښیدل، د وطن د ترقي لیواله و، د مسکو په مذاکراتو کښې پریژنیف ته دده خوله ماتوونکې ځواب دده د خپلواکۍ، افغاني غیرت او میراني ښه بیلګه وه. خو له بده مرغه چې لږ څه سرټمبه او سر زوري سړی و په کورنیو چارو کښې ورڅخه ځینې اشتباه ګانې وشوې، دده په کابینه کښې د ځینو پردیو منوونکو وزیرانو موجودیت هم دده د پاره او هم د وطن د پاره د راتلونکو بدمرغیو سبب شو که څه هم داود خان په وروستیو کلو کښې دې خبرو ته متوجه شو خو کار له کاره تیر و:

د «۱۳۵۷ هـ. ش» کال د ثور په «۷» د کودتا چیانو له خوا په جمهوري ارګ کښې د خپلې کورنۍ د زیاتو غړو او ځینو وزیرانو سره په شهادت ورسید خو چا ته تسلیم نه شو. پای.

# مـأخـذونـه


| شماره | نوم | ليكوال | كال | د نشر ځای |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | اوسني ليكوال | بينوا عبدالروف | ۱۳٤۰ | كابل |
| ۲ | افغانستان در مسیر تاریخ | غبار میر غلام محمد | ۱۳٤٦ | // |
| ۳ | په ځان او په جهان كښې | افغانستان كالنى | ۱۳۵۱ | // |
| ٤ | د افغانستان اطلس | د سروې او كارتوگرافی اداره | ۱۹۸٤ | // |
| ۵ | د اساسي قانون علويت | قانون پوه ساپی عبدالوهاب | ۱۳٦۸ | // |
| ٦ | مسكرات | مولوی محمد شعیب «حقانی» | ۱۹۹۲ | باجوړ-چارمنگ |
| ۷ | افغان او افغانستان | پوهاند «حبیبی» عبدالحی د رفیع ژباړه | ۱۳۷٦ | پیښور |
| ۸ | «مومند» محمدگل | «خلیل» همیش | ۱۹۹۵ | // |
| ۹ | د افغانستان دویم اساسي قانون ته... | پوهاند «بورگی» محمدطاهر | ۱۳۷۵ | پیښور |
| ۱۰ | د افغانستان دریم اساسي... | // // // | ۱۳۷٦ | // |
| ۱۱ | د افغانستان عمومی جغرافیه | پوهنوال «ساپی» لطف الله | ۱۳۷۷ | // |
| ۱۲ | شهرهای آریانا | «صدقی» محمد عثمان | ۱۳۵٤ | // |
| ۱۳ | د افغانستان تاریخی ودانی | میرمن نانسی هیچ دوپری | ۱۳۷۷ | // |
| ۱٤ | د افغانستان څلورم اساسي قانون | پوهاند «بورگی» محمدطاهر | ۱۳۷۸ | // |
| ۱۵ | په افغانستان كښې چاپيريال... | پوهنمل «گرديوال» شیر احمد | ۱۳۷۸ | // |
| ۱٦ | د مرگ په وزرو | «ننگیال» شهرت | ۱۳۷۸ | // |
| ۱۷ | د افغانستان لنډ تاریخ | پوهاند «حبیبی» د داود وفا ژباړه | ۱۳۷۸ | // |
| ۱۸ | د افغانستان سقوط | «غوث» صمد | ۱۳۷۸ | // |
| ۱۹ | د افغانستان مشاهیر | «هاشمی» سید محی الدین | ۱۳۷۸ | // |
| ۲۰ | رڼا او دفاع | پوهاند «كاكړ» محمدحسن | ۱۹۹۹ | // |
| ۲۱ | د امریكا د متحده ایالاتو لنډ تاریخ | «مجددی» شاه آغا | ۱۹۹۹ | // |
| ۲۲ | مختلفی خپرونی | نجات سنټر | ۱۹۹۹-۹۸ | پیښور |
| ۲۳ | یادداشتونه | ځل | ۱۳۷٤-۵٦ | // |

# منڼه او کور ودانی

د افغانستان پیژندنې لنډه لار د کتاب سره د دغو نباغلیو د ګټورو مشورو منڼه او کور ودانی ورته وایم

استاد محمد آصف «صمیم»، استاد سید محی الدین «هاشمی» استاد محمد ابراهیم «همکار»، استاد مصباح الدین «صباح» او استاد زکریا ملاتړ.

# Short informative manual About Afghanistan

By:

Associate Professor Said Noor-u-llah Zal

March 2001